بسم الله الرحمن الرحیم

# د ادب او ملاقات مسئلې

مؤلف

مولنا رفعت (قاسمی) رحمة الله علیه

پښتو ژباړه

عبد الملک حصیف

مکتبۂ رشیدیه

سرکی روڈ کوئٹه، فون: ۲۶۶۲۲۶۳

# دکتاب پېژندنه


دکتاب نوم: دادب اوملاقات مسئلې

مؤلف: مولنارفعت (قاسمی)

ژباړونکی: عبدالملک (حصیف) عاجز

کمپوز،ډيزاين: دنورالقرآن اداری دکمپوزاوترجمې څانګه

کمپوز: ابوخالد مولوی عبدالاحد (مجروح)

تصحيح اوسمون: ابوخالد

خپرونکي: رشيديه کتاب خانه سرکي روډ کوټه

چاپ ځای: لاهور

چاپ شمير: ۱۵۰۰ ټوکه

چاپ کال: ۲۰۰۷/ دمئ مياشت

چاپونکی: محمدساجد/دموبايل شميره /۰۳۳۳۷۸۲۵۴۸۴


**ضروري يادونه:**

يواځې لوي خدای ﷻ هغه ذات دی چې، ټول کارونه ئې په پوره معنی بشپړ او مکمل دي خوانسان هغه ناقص او بې توانه موجود دی چې هيڅ يو کارئې هم بې نمګړتيا نه وي.

ګرانو لوستونکو! که تاسو ته دليکنې، تصحيح، چاپ، جلدسازي او دارنګه په هره برخه کي کومه غلطي په نظر درغله دمهربانۍ او بشري تقاضا له مخې يې موږ ته زموږ په نمبر يا ادرس خبر راکړی. تر څو په دوهم چاپ کښې ئې اصلاح کړو. او تاسو ته لوی خدای ﷻ اجر اوثواب درکړي.


**د مکتبه رشيديه سرکي روډ کوټه لخوا**

**فون:** 081-266223

**موبائيل:** 0333-7825484

اللهم اختم لنابالخیر والسعادت والبشارت والایمان

ابوخالد

## دژباړونکي هیله

الحمد لله الذي لیس لما رفعه خافض ولا لما ابرمه ناقض ، والصلوة والسلام علی رسوله الذي کسّر ابنیة الکفر والاصنام

**و بعد:**

د قادر او مقتدر خدای ﷻ شکر اداء کوم چې ماته یې د دې باوجود چې د هغه په سپیڅلیو احکامو به راڅخه تېرې شوی وي او د بیلابیلو ګناهونو د ارتکاب عامل به یم دتېر په ډول د یو بل اثر د ژباړې نېکمرغي او بریا را په برخه کړه ، د دغه کتاب د سم او پوره پېژندنې د بیانونو اوږدې صحراګاني غواړم صرف په دې تګوسره لنډې کړم چې دغه کتاب د یوې پاکې ، اسلامي ، او اخلاقي معاشرې د جوړولو په هدف قلمونه بې رنګه او د کاغذ سپین مخونه تور کړل ، او دمحتوی مأخذیې اسماني سپیڅلي کتاب قرآن کریم او نبوي ﷺ احادیث دي هغه قرآن او احادیث چې بشریت ته یې د جاهلیت له تیارو نجات ورکړ. او د دوی له ډېر مطالعو او څېړنو څخه یو عاجز انسان په دې واکمن شو چې هواته والوزي او پر مخ تللې ټکنالوجې دبریالي او خوشحاله ژوند محور وګرزوي دغه کتاب ته د سپیڅلي قرآن اوپاکو احادیثو د مشهورو ماهرینو لکه د محدث کبیر مولانا مفتي سعید احمد صاحب (زیدمجد هم) ، د دارالعلوم دیوبند د مفتي مولانا ظفیرالدین صاحب ( طال الله عمره )او. دمولانا قاضي اظهرمبارکپوري صاحب ( مدظله ) د تقریظونو افتخار هم په برخه شوی دی خود کتاب دجحمي زیادت د مخنوي په وجه د هغې بیان له ژباړې پاته شو الغرض: یوه ټولنه هغه وخت پر مخ تللې ټولنه کېدای شي چې قانون ولری ، دیو او بل حقونو ته پکې احترام موجود وي او

د ژوند په هر ډګر کې يې د ادابو مراعت موجود وي ، او يو انسان هغه وخت ښکلی ( ښائسته ) دی چې د خپلې الهي تحفې وجودي ښائست تر څنګ اخلاقي ښکلا هم ولري د هر انسان ( نر او ښځې) لپاره دا ډېره ضروري ، او د آرام ژوند تېرولو لپاره يو شرط دي چې د بل انسان په وړاندې له ښو اخلاقو او هغه پاک چلند او آدابو څخه کار واخلي کوم چې د بشريت رهبر(ﷺ )په ژبني او ملي ډول خپل امت ته ښوولي دي ، د دې لپاره چې يو څوک د ښو اخلاقو او ادب پوهنې خاوند شي لازماً بايد يوه ښوونکې مرجع ولري ، چې له ډېرو مراجعو څخه بهترينه مرجع به زما په فکر کتاب وي ، پاک خدای ﷻ دې مولانامحمدرفعت قاسمي صاحب ته د دغه عرق ريزي اجرعظيم ورکړي او الله ﷻ دې د مسلمه امت ټول واړه او ځوانان د ښه علم ، ښه استعداد او داسې پاک او اخلاقي ژوند څخه بر خمن کړي لکه د سيدالمرسلين ﷺ په اصحابو کرامو چې يې لوربينه شوې وه. آمين .

*عبدالملک حصيف (افغاني)*

*دلمريز کال ۱۱۳۸۵ د حوت د مياشتې ۱۱مه*



**په پيل کې :**

بسم الله الرحمن الرحيم

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا
وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ٢٧ فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا
فِيهَا أَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوهَا حَتَّى يُؤْذَنَ لَكُمْ وَإِنْ قِيلَ لَكُمُ ارْجِعُوا فَارْجِعُوا
هُوَ أَزْكَى لَكُمْ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ٢٨ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَدْخُلُوا
بُيُوتًا غَيْرَ مَسْكُونَةٍ فِيهَا مَتَاعٌ لَكُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ

(۱۸)پاره /سورة النور )

ژباړه :اى هغو کسانو ! چې ايمان موراوړی دی مه ننوزئ ستاسو له کورونو بغير(نورو پردو کورنو ته )ترهغو پوري چې اجازه وغواړئ ،اوسلام واچوئ پر اهل دهغو کورونو ،داکارغوره دی ستاسو لپاره ښائي چې تاسو پند(نصيحت ) واخلئ ، که چيرې تاسي ونه موندل په دي کورکي هيڅوک . نوتاسو مه ننوزئ ترهغوچې اجازه درکوله کيږي تاسوته ،اوکه چيري تاسو ته وويل شي چې وګرزئ ،نوبيرته وګرزئ تاسو دا کارډيرپاک دي ستاسو لپاره ،اوخدای ﷻ عالم دي په هغه چې تاسو ئي کوئ ، نشته پرتاسو باندی ګناه په دي کي که چيري تاسو ننوزئ هغو کورنوته چې څوک نه پکښي اوسي په هغه کي اسباب وي ستاسي ، اوخدای ﷻ پوهيږي په هغه چې ښکاره يې کوئ اوپه هغه چې پټ ئي کوئ.

## د اسلامي تعليماتو جامعيت

د يوې بدي (خرابي) او ښه والي د له منځه وړلو تکامل هغه وخت کېدای شي کله چې د هغه ټول اسباب ، ذرائع ، وسائل او موجبات له

مېنځه يوړل شي ؛ اسلام يو حکيمانه او مصلحانه مذهب دي او د ژوند د هرې ځانګې لپاره يې قوانين وضع کړي دي د ژوند يو اړخ هم داسې نشته چې د هغه له اغېزو بې برخې پاته شوی وي ، په هغه کې د اخلاقي ، ټولنيز، ژوند لړ او ټولو اصلاحاتو لپاره مکمل او هر اړخيځ قوانين ترتيب شوي دي ، اسلام د هرې بدۍ د پرمختيا او خپرېدلو مخه نيولې ده ، د مثال په ډول د زنا په مرتکب کېدلو کې چې هر څه د دغه عمل د کولو لپاره سبب ګرزي د هغو ټولو يې يوه معلومه او مشروع لار ټاکلې ده ؛ د هغه لپاره يې په پوره ډول ترتيب نيولی ؛ او د شهواني جذبو د آرامولو لپاره يې يوه فطري لاره خلاصه کړې ده. د زنا لومړنی او بنسټيزه لاره ازادنظري يا نظربازي ده چې خلک يې په محبت سره تعريف کوي ، دا يو نادېده شي دي چې د سترګوله لارې زړه ته ننوزي ، نود آفت د مخنوي لپاره اسلام دا لارښوونه کړې ده چې تاسو خپل نظرونه ټيټ ساتئ او بغير له څه وجې پردو (نامحرمو) ښځوته مه ګورئ د پردې له اهميت او ارزښت څخه انکار نشي کېدای. که چېرې د مواصلاتو (په نامناسب ډول يو بل ته درسېدلو) او تراونو لارې چارې او وسائل له مېنځه يوسو نو کله به هم د زنا د مېنځته راتلو له پېښې سره مخ نه شو. ډېر ځله د زنا پېښه په داسې ځايو کې صورت نيسي چې د نارينه او ښځې تر مېنځ داسې څه نه وي چې د هغو د ناسموليدو کتو لاره بنده کړي ، لرې او نژدې خپلوۍ او ځنګلورۍ په ناسم ډول تعبيرېږي او پالللي کېږي د يو او بل کورته بغير د هغو له اجازې ننوزي ، د تنها او ګډ اوسېدلو په



ځايو کې احتياط نه کيږي. دا ،او همدغه رنګه نور انسانانو ته د زنا موقع پلاس ورکوي او له پټو لارو فساد خپروي. همدغه رنګه که نارينه او ښځې سره په يو ځای زدکړه کوي نو د دوی تر منځ يو بل ته تشوېقېدل يوه فطري خاصه ده. نو هغه وخت چې د زنا موانع نه وي او مواقع ميسّر وي ، نو د شهواني قوتونو کار په ځرګندو ډولو د خلکو مخ ته راځي. نو له دې خاطره د اسلام دين په دغه سلسله کې ضروري هدايات ورکړي دي چې يو له هغو څخه دا دي چې يو څوک دی هم د بل چا کورته په خپل سر په ارام زړه ، او بې پروايي سره نه ورننوزي ؛ هر انسان پوهېږي چې بې اجازې او بې پروايي سره د چا کورته ورننوتل يو وحشيانه او جاهلانه کار دي ، هېڅ يو نېک او اخلاقي انسان دغه دنګه کار نه خوښوي. پلاروي که زوی وي او که بل خپل وي ، خو هېڅ يو چاته هم اسلام کورته بغير له اجازې د ور ننوتلو اجازه نه ده ورکړې. او دغه (کوروته بغير له اجازې اوبې پروائي سره ورننوتل ) د اسلام د مبارک دين لخوا د ناپوهۍ طريقه او د بد اخلاقۍ ځرګندويي بلله شوې ده ، ځکه چې که د کور د خاوند او ورتلونکي چاتر مينځ ډېره ژوره خپلوي نه وي او يا کورته ننوتونکی پردی څوک وي ، نو هغه وخت بياله بې اجازې ننوتلو څخه بېلابېلې فتنې او تکليفونه وجود نيسي. مقاتل بن حيان ﷺ فرمايلی دي چې د جاهليت په زمانه کې چې لا اسلام خلکوته نه ؤ رسېدلي خلک به له يو او بل سره مخامخ کېدل (يابه سره يو بل ته ورتلل ) خو په يو او بل به يې سلام نه اچولو ، خلک چې به د نورو کوروته تلل نو له

کوروالوبه يې اجازه نه اخسته بلکه همداسې بې درغ او دروغه به ننوتل
کله چې به د مقصد تر ځایه ورسېدل هلته به يې بیادا آواز وکړ چې زه
راورسېدم ! ، نو دا به ډېر ځله کوروالوته سخته تمامېدله ، او داسې
به هم کله پېښېدل چې د کور په خاوند به په داسې حالت کې د چا
راتلل ډېر بد لګېدل. پاک خدای ﷻ هغه د جاهلیت دستور او قواعد
په ښو ادابو سره بدل کړل ، نو ځکه خو فرمايي : ( ذالکم خیر لکم )
دغه تګ لاره ستاسو لپاره بهتره ده . په دې کې په کور کې د
اوسېدونکو او کورته ننوتونکو لپاره خوشحالي او آرامي ده . پاک
خدای ﷻ د هغه اهمیت دومره اوچت بللی دي چې په قرآن کریم کې
يې د هغه لپاره په تفصیلي ډول احکام نازل کړي دي همدارنګه له
هغه ټینګار څخه چې حضور ﷺ په هغوی باندې د خپلې مبارکې وینا
اوعمل په ذریعه کړی دي د نن ورځې مسلمانان غافل دي ، بلکه لادا
چې بعضې لیک لوست لرونکي نېکان خلک هم نه دغه ګناه بولي
اونه په الهي ﷻ مقرراتو د عمل کولو په فکر کې دي د دنیا نوروپر
مخ تللیو د هغو په غوره کولو سره خپله ټولنه سمه کړې ده ،
مسلمانان ( چې ورته پکار ده چې تر بل هر قوم په عمل کې له مخه
وای) تر ټولو قومو پاته ښکاري . په هر حال د استیئذان ( اجازې
غوښتلو) مسئله د قرآن کریم یو مهم او داسې حکم دي چې عمل
ورباندې واجب دي. په هغه کې د یوې ذرې په اندازه سستي او بدلون
راوستل «حضرت ابن عباس ؓ قرآن کریم له آیت څخه انکار»
غوندې سختوټکو باندې تعبیر کړې ده.



### د اجازې غوښتلو وجې :

(١) پاک خدای ﷻ خپل هر بنده ته د اوسېدلو لپاره یو نه ،یو ځای
ورکړي دي ، هغه که ملکاً خپل وي ، که له چاڅخه په خواست
غوښتل شوي وي او که په کرایه نیول شوی وي خو لنډه دا چې په هر
ډول ترکومه وخته یو څوک په کوم کور کې اوسي تر هغه وخته به دغه
کور د هغه بلل کېږي هغه کور یا ځای ته د هېڅ یو چا حتی د کور د
اصلي خاوند ورتلل هم بغیر له اجازې روانه دي کور د انسان مسکن
( د اوسېدلو ځای ) دی او له مسکن څخه اصل مقصد او غرض
ارامي او خوشحالي لاس ته راوړل دي خدای ﷻ چې هر کله پخپل
معزز کتاب کې د کوریادونه کړې ده نو تر څنګ يې سکون ته هم
اشاره شوې وي لکه چې فرمايي ( وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُم مِّنۢ بُيُوتِكُمۡ سَكَنًا
،(د النحل سورة ) او پیدا کړي دي خدای ﷻ تاسو لره له کورونو ستاسې
څخه ځای د اوسېدلو ( هغه اوسېدل چې په سکون او راحت کې وي )
او دغه سکون او راحت هغه وخت پر ځای پاته کېدای شي چې انسان
د بل چاله مداخلې سرته ورسوي او ارام وکړای شي ، د کوروالو
ازادي ته نقصان رسول د کور ا اصلي ارزښت له منځه وړل او دوی ته
اذیت او تکلیف رسول دي ، په داسې حال کې چې د اسلام دین کله هم
چاته د دې اجازه نه ورکوي چې بل چاته تکلیف ورسوي او دغه عمل
د اسلام له لوري حرام ګڼل شوی دي. د اجازې د احکامو په مراعت او
تعمیل کې یوه لویه ګټه د خلکو د ازارۍ په لاره کې د خنډ کېدلو او

هغوی ته د ضرر رسولو څخه د ځان ساتل دي چې د هر نېک او شريف انسان عقلي فريضه ده.

دوهمه ګټه يې پخپله د هغه چا لپاره ده چې د چا دليدلو لپاره ځي، يعنې که کور يا بل ځای ته ورتلونکی يو څوک د هغه ځای له اوسېدونکو څخه اجازه واخلي او د نېک انسان په ډول هلته داخل شي، نو بيا دهغه ځای اوسېدونکي هم د هغه خبرې ته غوږ نيسي، که هغه څه غوښتنه لري يا څه ته ضرورت لري نو دوی يې پوره کولو ته بيا ډېر لېوال وي، خو هغه څوک په ناڅاپي ډول داخل شوی وي يا داخليږي، نو د هغه ځای اوسېدونکي يې د يوې ناڅاپي بلا په څېر ګڼي او د بېرته ايستلو لپاره يې بېلا بېل کوششونه کوي، که هغه د خير خبره او يا بل څه راوړي وي هم د هغه ځای اوسېدونکي ورڅخه ځان شاته کوي، او ورسره د ښه نيت څرګندونه نه کوي. او د بې اجازې راتلو له امله مسلمان ته د ضرر رسولو ګناه خويې لانوره ده

(۳)دريمه ګټه او حکمت پکې د بې حيايۍ او بدکاريو مخه نيول دي، د بل چا کور يا ځای ته په بې اجازې ننوتلو کې د دې احتمال هم شته چې د ننوتونکي نظر په غير محرمو ښځو باندې ولګېږي او شيطان يې په زړه کې غلط فکرونه ورواچوي، نو د دې لوړ ارزښت له امله قرآن کريم د اجازې حکمونه د حد قذف او حد زنا له حکمونو سره په متصل ډول راوړي دي که انسان فکر وکړي نو په ډېرښه او پوره ډول به پوه شي چې بې اجازې يا ناڅاپه د چا کور ياځای ته دخول بايد ونشي، ځکه چې ځينې وختونه انسان د يواځيوالي په صورت کې په



داسې کار مشغول وي چې نور څوک ورڅخه خبرېدل نه غواړي، نو په دغسې وخت کې که يو څوک په ناڅاپي ډول په هغه باندې ورځي، نو هغه ورڅخه ډېر په تکليف کيږي او دهغه را تلل ډېر بد بولي، دغه رنګه نور هم په ځان بايد ورقياس کړل شي، يعنې که تاسو د بل چاځای يا کور ته ناڅاپه داخليږئ نو هغه رنګه فکر له ځان سره وکړئ چې که ستاسو بې اجازې يو څوک ستاسو کور ته په نامناسب حالت کې داخليږي، نو په تاسو به څومره بده لګيږي؟ هغومره تاسو هم په هغه چا بدلګېږئ کوم چې تاسو د هغه کور يا ځای ته په داسې حالت کې بې اجازې داخليږئ چې هغه مو دغه رنګه ننوتل نه غواړي. ځکه چې که انسان غواړي يو کار له خلکو څخه پټ تر سره کړي نو د بل چا په ناڅاپي ننوتلو سره هغه پټ نشي پاته کېدای، او دا خو بيا ښکاره خبره ده چې د زور له لارې د بل چا راز (پټ حالت) ځان ته معلومول ګناه ده، ځکه چې دا بل چاته ضرر رسول دي، او مسلمان ته ضرر رسول ګناه ده. د بې اجازې او ناڅاپي ننوتلو څخه کله داسې هم پيښيږي چې د کور يا ځای خاوند ته په بې اجازې ورننوتلو سره غصه ورشي، او په دې وجه يې له خولې څخه سختې او سپکې سپورې ووزي، او کله يې بيا له خولې څخه په ناخبرۍ کې د ناڅاپه راتلونکي انسان لپاره بده دُعا (ښېرا) هم ووزي. دا چې کور يا بل ځای ته بې اجازې ورننوتونکي په ناحق ډول په هغه څه کې مداخله وکړه چې ښکارندويي يې مناسب نه وه، نو په دې سره دهغه ځای خاوند ته ضرر ورسېدی، نو ځکه په دغه حالت کې د کور خاوند مظلوم ګڼل

کېږي او د مظلوم ښېرا ډېره ژر قبلېږي لکه چې د بخاري شريف په يو حديث کې حضور ﷺ فرمايي: اِتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُوْمِ فَاِنَّهُ لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ حِجَابٌ.

ژباړه: د مظلوم له بدي دعا څخه ووېرېږئ ځکه چې د پاک خدای ﷻ او هغې تر منځ هېڅ پرده نشته.

(۲) کله داسې هم وي چې يو څوک د يواځيوالي په حالت کې وي نو د جامو په اغوستلو او غسل کولو کې ډېر احتياط نه کوي، نو که په دغه حالت کې ورباندې په ناڅاپي ډول څوک راشي نو هغه هم ډېر شرمنده شي او راتلونکی سړی هم بيا پر خپل دغه کار پښېمان وي د انساني طبيعت پيدا ايښت داسې دی چې کله انسان په يواځيتوب کې واقع کېږي نو په يونه يو خيال او چرت کې حتماً ډوبېږي، نو که يو څوک په ناڅاپي ډول ورباندې په دغه حالت کې راشي نو هغه نابېره پورته کېږي او ورباندې يو قسم ډار او ترهه راځي چې له امله يې دماغ او زړه ته په ناڅاپي ډول صدمه پيښېږي، نو له دې خاطره چې مؤمن د پاک خدای ﷻ په نزد ډېر عزتمن دی ځکه نو هغه ته ضرر او تکليف رسول لويه ګناه ده، نو له دې امله ضروري ده چې تر ننوتلو له مخه له بهر څخه داسې يوه خبرتيا ورکړله شي چې د محبت او تعلق بڼای اړخ ولري او دومره د محبت د زياتوالی سبب وګرزي چې د ترهې هېڅ نمونه پاته نشي او له احترام او درنښت سره اجازه تر لاسه او کور يا ځای ته داخل شي- الغرض دغه لړ څه هغه اساسات دي چې که مونږ ورباندې عمل وکړو، نو کولای شو چې له خپلې ټولنې څخه يوه



داسې ټولنه جوړه کړو چې د نورو لپاره مثال وګرزي او پکې صرف خوشحالي، ارامي او سوکالي د هر چا په برخه وي، له دې څخه بغير مونږ نشو کولای په ټولنه کې ارامي راولو او تل به په پرېشانيو کې يو چې دغه پرېشانۍ مو بيا هېڅ وخت هم ارام ته پرېنږدي

**د اُنس (محبت) حاصلولو ګټې:**

په قرآني آيت کې چې څه راته ښول شوي دي هغه ( حَتّٰى تَسْتَاْنِسُوْا وَتُسَلِّمُوْا عَلٰى اَهْلِهَا . (الاية) دي يعنې د بل چا کورته تر هغه وخته پورې مه داخلېږئ تر څو مو دوه کارونه نه وي کړي اول دا چې اجازه مونه وي اخستې، دوهم دا چې سلام مو نه وي اچولی. د (استيناس) لفظي معنې اُنس دی چې محبت او په مينه سره د يو او بل ډېر نزديکت ته ويل کېږي. دلته د جمهورو مفسرينو په نزد له هغه څخه مراد استيذان ( اجازه تر لاسه کول ) دي. په حقيقت کې د دغو دوو لفظونو تر منځ ډېر لطيف يا نازک فرق دی چې دلته ورباندې نظر اچول نه دي پکار که پاک خدای ﷻ حَتّٰى تَسْتَاْذِنُوْا فرمايلي وای نو معنی به يې دا وه چې تاسو تر هغه وخت د خلکو کوروته مه داخلېږئ تر څو تاسو اجازه اخستې نه وي خو د تَسْتَاْذِنُوْا پر ځای د تَسْتَاْنِسُوْا لفظ فرمايل شوی دي. په عربي ژبه کې اجازې ته اِذْن ويل کېږي چې د اجازې اخستلو معنی لپاره يې د (اِسْتِئْذَان ) لفظ کارول کېږي. د اِسْتِيْنَاس لفظ که څه هم د اجازې اخستلو په معنی کارول کېږي خو دا دهغه خپله او حقيقي معنی نه ده د ((تَسْتَاْنِسُوْا )) لفظ له (( اِسْتِيْنَاس )) څخه اخستل شوی چې معنی يې اجازه غوښتل دي چې

اساسي لفظ يې اُنس دی . که څه هم د تَستَأنِسُوا معنی خو اُنس غوښتل ، اُنس معلومول او یاله خپله ځانه بل ځاته اُنس ورکول دي مګر پال خدای ﷻ د تَستَأذِنُوا د لفظ پر ځای تَستَأنِسُوا غوره کړې دي ،حال دا دی چې د دې معنې لپاره خو په ظاهره لومړنی لفظ زيات خوندورۀ مګر د اِستِناس لفظ ځکه وکارول شو چې په هغه کې ډېرې معنا ګانې نغښتې دي . د اِستِناس لفظ له (اُنس ) څخه اخستل شوی دي چې مقصد ورڅخه د محبت او ګرانښت حاصلول ، او وحشت او کرکه له منځه وړل دي . د اجازې غوښتونکی په عام ډول تر اجازې اخستلو له مخه په وېره کې وي چې هغه کور يا ځای ته دورننوتلو اجازه به ورکړله شي او کنه ، خو داجازې تر لاسه کول بيا د دې وحشت د له منځه تللو سبب ګرزي ، نو ځکه ورته د تَستَأنِسُوا لفظ کارول شوی دی زمونږ په ژبه کې د وحشي لفظ هغو ځناورو ته کارول کېږي چې له انسان سره نژدې کېدل اوګډون نه قبلوي او ورڅخه تېښته کوي . او هغه چې له انسان څخه نه تښتي هغو ته اېلېدونکي (ياعادت کېدونکي )ويل کېږي. نو څرنګه چې له چاسره دتړاو او عادت قبلول دارامي سبب دي ، نو ځکه خو د تړاو غوښتل بعينه د ارامي غوښتل هم کېدای شي. دغه رنګه ددغه لفظ له غوره کولو څخه دا هم معلومه شوه چې مقصد د وحشت او کرکې دفع کول ،او د هغه کور ياځای اوسېدونکي له خپل راتګ څخه خبرول دي.



## د دروازې ټکولو شرعي حکم :

په دغه زمانه کې که یو څوک غواړي چې د اجازې په ترلاسه کولو کې په سنتو باندې عمل وکړي ، نو سنت طريقه دا ده چې کله تاسو د چا د کور دروازې ته ورسېږئ ، نو له بهر څخه ورباندې سلام واچوئ او بيا د خپل نامه له ورښوولو وروستو اجازه وغواړئ نن سبا د اجازې په اخستلو کې څه مشکلات د انسان مخې ته راځي لکه دا چې هغه څوک چې ته غواړې در څخه د ننلوتلو اجازه واخلي له دروازې څخه لرې وي او د سلام اواز اود اجازې اخستلو الفاظ تر هغه پورې نه رسېږي . کېدای شي چې په هره زمانه او هر هېواد کې د اجازې اخستلو طريقې سره فرق ولري . د اجازې اخستلو لپاره ژبه خاصه شوې نه ده . د دې لپاره له رنګارنګ طريقو څخه يوه يې د دروازې ټکول دي او دغه کار ه درواياتو او احاديثو څخه هم ثابت دي – مګر دروازه بايد په دومره زور ونه وهله شي چې په اورېدونکی باندې وېره غالبه شي او په منډه له خپله ځايه پورته شي. بلکه په داسې يو ډول بايد دروازه ووهله شي چې د اورېدلو مناسب وي او حيرانونکې او تکليف رسونکی نه وي لکه چې د حضور ﷺ د دربار په اړوند فرمايل شوی دي ( عَنْ ابنِ مالک ؓ انّ ابْوابَ النّبِي ﷺ تقرَعُ بِالاظافِير) (الحديث ) ژباړه: حضرت انس ؓ فرمايي چې د حضور ﷺ دروازې به په نوکانو ټکولې کېدلې. له دې څخه معلومه شوه چې دا شرط نه دی چې اجازه به په ژبه سره اخستله کيږي په بل ډول هم اجازه اخستله کېدای شي – بل دا چې له اجازې اخستلو څخه مقصد د

وحشت او تکليف دروازې ترل دي چې همدا سبب گرزيدلی چې خلک بايد اجازه واخلي.

**د مفتي محمدشفيع صاحب رح تحقيق :**

د پورتنۍ مسئلې په اړوند د مولانامفتي محمد شفيع رحمة الله عليه څيړنه داده چې که په يوځای کې د گنټۍ( هارن) په ذريعه د کور د خاوند خبرول رواج وي ، نو په کور يا ځای ته درتلونکي باندې د هغې استعمالول واجب دي او دا داجازې غوښتولو لپاره کفايت کوي مگر سنت داسې دي چې له هارن وهلو وروستو خپل نوم هم په دومره اواز سره واخلي چې په بېلابېلو ځايو کې رواج لري لکه چې نن سبا خلک ددې لپاره چې د کوروال يې وپېژني خپل شناختي کارډ يا پيژندپاڼه د کور خلکوته ورکوي. مگر له هغه څخه هم مقصد د اجازې طلب کول دي ، په دې کې هيڅ شک نشته چې له هغه څخه هم د اجازې اخستلو کار اخستل کېدای شي او اجازه ورکونکي ته د اجازه اخستونکي پوره نوم او پته په داسې حال کې بغير له تکليفه پوره معلومېدای شي چې په خپل ځای به ناست وي ، نو ځکه د هغې په غوره کولو کې هيڅ منعه نشته.

**يو اعتراض او د هغه ځواب :**

په پورتني ايت شريف کې خطاب د ( ياايّها الذينَ آمَنُوا ) په ټکو سره شوی دي چې د سړو (نارينه گانو ) لپاره کارول کېږي. د قرآن کريم ډېرې احکام په داسې ډول نازل شوي دي چې سړو (نارينه گانو ) ته پکې خطابونه شوي دي ، او ياد هغو نزول د سړو په حق کې شوی وي



خو ښځې هم پکې ورگډې وي . څرنگه چې د قرآن کريم د عامو حکمونو انداز همدغه ده ، مگر په عام ډول په هغو ټولو کې ښځې هم ورگډې دي ، بغير له هغو مسئلو چې په سړو(نارينه گانو) پورې خاصې دي - نو په پورتني آيت کې خطاب د نارينه گانو او ښځو دواړو لپاره دي.

**د صحابياتو مېرمنو رضی الله تعالی عنهن طرزعمل :**

په عام ډول هره مېرمن (ناپوهاني خو پر ځای پرېږدو ، بلکه ليک لوست لرونکې مېرمنې هم په دې عقيده دي چې مېرمنو (ښځو) ته د دې ضرورت نشته چې له ښځو څخه دورننوتلو اجازه واخلي. دوی بغير له اجازې اخستلو د خلکو کوروته ځي او راځي. حال دا دی چې کله وخت دوی د خپل دغه کار له امله له سختې پرېشانۍ او پښېمانۍ سره مخ کېږي . د صحابه وؤ ؓ په زمانه کې د هغو د مېرمنو طرزعمل (کړنلاره ) دا وه چې کله به دوی مبارکې د بل چا کور ته تلې ، نو اول به يې د ورننوتلو اجازه اخستله بيا به هلته ننوتلې.

**روايت** : حضرت ام اياس رضی الله تعالی عنها فرمايي چې مونږ څلور ښځې وُ چې حضرت عائشې رضی الله تعالی عنها ته به ډېرې ورتلو ، کورته تر ورننوتلو له مخه به موله هغې رضی الله تعالی عنها څخه اجازه اخستله هر کله چې به د هغې رضی الله تعالی عنها له خوا اجازه راکړله شوه بيا به مونږ د هغې کورته د ننه ورتلو .

روایت: دی چې حضرت عائشې رضی الله تعالی عنها ته څلور ښځې راغلې او په داسې ډول یې اجازه طلب کړه چې: مونږ کولای شو د ننه درشو؟ هغې رضی الله تعالی عنها ورته وفرمایل نه. په تاسو کې چې څوک د اجازې اخستلو په طریقه پوهېږي هغه دې اجازه وغواړي، نو بیا له هغو څلورو څخه یوه مېرمن ورمخکې شوه او لومړی یې په هغې سلام ووایو او بیایې اجازه وغوښتله، نو ام المؤمنین عائشې رضی الله تعالی عنها دورتلو اجازه ورکړه او بیا یې هغوی ته دغه ایت مبارک ورواوراؤ. (لاتَدْخُلوْا بُيُوتاً غَيْرَ بُيُوْتِكُمْ )تر اخېره

### د ایت شریف عاموالی:

د ایت شریف له عام والي او صحابیاتو مېرمنو رضی الله تعالی عنهن له عمل څخه څرګنده شوه چې د بل کورته د ورتلو پر وخت د اجازې اخستلو حکم عام دی ،نارینه ، او ښځینه. محرم او غیر محرم ټول پکې داخل دي یعنې د هر چا لپاره (نارینه وي که ښځینه ) د اجازې اخستل واجب دي. د مثال په ډول که یو نارینه د خپلې مور ، خور لور او یا بل خپل کور یا ځای ته ورځي ، نو هم باید له هغه څخه اجازه واخلي دغه حکم د ښځې لپاره هم دي.

### د یوې شبهې مخنیوی:

په تېر شوي ایت شریف کې (بُيُوْتاً غَيْرَ بُيُوْتِكُمْ ) راغلي دي ، نو خپل کور کوم کورته ویل کېږي اول خپل کور څخه مقصد څه دي او پردی یا د بل چې کور کوم کور بلل کېږي؟ تر ټولو لومړی په دې خبره ځان یوهول پکار دي چې یو څوک باید د بل چاڅومره نژدې خپل وي چې



له دې امله دا شک پیدا کېدای شي چې دغه دي د هغه خپل کوروي. له دې څخه وروستو بیا د خپل کور پېژندنه کېدای شي ... د انسان خپلوي له څو ډوله انسانانو سره وي لومړی خپلوي د خپل اصل سره تړلې وي یعنې له هغو خپلوانو څخه به څوک لري چې دی ورڅخه پیداشوی دي لکه مور ، پلار ،نیکه ، انا. چې په دوی ټولوکې ډېر نژدې خپل مور او پلار دي. دوهم ډول خپلوي له خپلو فروعو سره یعنې له هغه چا سره چې له ده څخه پیدا شوي وي ،لکه زوی ، لور او د هغوی اولادونه چې په دوی کې ډېر نژدې خپل د هغه سکني (یاصلبي) اولادونه دي. او د هغه د برابر په خپلوانو کې یې ډېر نژدې خپلوان وروڼه او خوندې دي. او بل ډول خپلوي د خسرګنۍ له خلکو سره وي چې تر ټولو نژدې خپل پکې خپله مېرمنه ده.

### د هر یو لپاره ځانګړی حکم:

اوس تاسو د هر یو لپاره ټاکل شوی حکمونه ځان ته معلوم کړئ او بیا د خپل کور او نورو خلکو د کورونو اندازه ولګوئ (يَسْتَأْذِنُ الرَّجُلُ علی اِبْنِهِ وَ اَخِيْهِ وَ اُخْتِه) (الادب المفرد ). ژباړه: انسان ته پکار دي چې له خپل پلار ، ورور او خور څخه اجازه واخلي . له دې څخه څرګنده شوه چې د ورور ،خور او پلار کور خپل هغه رنګه کور نشي بلل کېدای چې پکې د اجازې اخستلو ضرورت نه وي.

### د خاصو خلکو لپاره د اجازې غوښتل:

له پورتنۍ ذکر شوي خبرې څخه داهم معلومه شوه چې لکه څرنګه چې یو څوک نشي کولای د پلار ، ورور او خور کور ته بغیر له اجازې

ننوزي همهغه رنګه که څوک د خپلو اولادونو کورته ورننوزي نو هم ورته ضروري ده چې له دوی څخه اجازه وغواړي . چې له دواړو اړخونو (اصل،او فرع) څخه د اجازې اخستلو مقصد دوی خبرول او بیا له دوی سره یو ځای کېدل دي . د هغه اساس له مخې چې اولاد باید له خپل پلار څخه د ورتلو اجازه وغواړي په همهغه ډول پلارته هم ضروري ده چې له اولاد څخه اجازه وغواړي. تر دغه ځایه د نژدې خپلوانو له لړۍ څخه پلار ، ورور ،خور او اولادونه ووتل ، او صرف مور او مېرمن پاته شول چې د هغو یادونه بیا په یو تفصیلي حدیث شریف کې شوې ده.

**له مور څخه د اجازې اخستلو بار بار پوښتنې :**

په موطأ دامام مالک رحمة الله علیه کې مرسل روایت دی چې فرمایي: عَنْ عَطاءِ بْنِ یَسارٍ اَنَّ رَجُلاً سَأَلَ رَسُوْلَ اللهِ (ﷺ) أأسْتَأذِنُ عَلَي اُمّي، فَقالَ :نَعَمْ فَقالَ الرَّجُلُ اِنّي مَعَهافِی الْبَیْتِ، فَقالَ رَسُوْلُ اللهِ (ﷺ):اِسْتَأذِنْ عَلَیْهَا فقالَ الرَّجُلُ اِنّي خادِمُها، فَقالَ ﷺ اِسْتَاءْذِنْ اَتُحِبُّ اَنْ تَراها عُرْیانَةً ؟فَقالَ لا ، فَقالَ ﷺ اِسْتَأذِنْ عَلَیْها . (الحدیث)

عطاء بن یسار ؓ روایت کوي چې یو سړي له حضور ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې زه باید له خپلې مور څخه هم اجازه واخلم ؟ حضور ﷺ ورته وفرمایل: بلې: ته باید له هغې څخه اجازه واخلې ، بیا هغه سړي ورته وویل چې زه خوله خپلې مور سره په یوه کور کې اوسېږم ، حضور ﷺ ورته وفرمایل چې ته له هغې څخه اجازه اخله. هغه سړي بیا وویل چې زه خو دهغې خدمت کوم (دغه سړي ځکه بیابیا (په وار وار) پوښتنه



کوله چې نه یې غوښتل یوه باریکي هم ورڅخه پاته شي ) نو حضور ﷺ بیا ورته وفرمایل چې له هغې څخه اجازه اخله. ایا ته دا خوښوې چې ته خپله مور په داسې حالت کې ووینې چې هغه لوڅه (بې جامو )وي ؟ هغه سړي ورته وویل چې نه. نو سردار ثقلین ﷺ ورته وفرمایل دا چې ته دا نه غواړې ، نوله هغې څخه اجازه اخله ، ځکه چې انسان د یوائیتوب په حال کې مخلی بالطبع وي . حضرت ابن مسعود ؓ فرمایي خپلو مېندو او خوېندوته د ورتلو په حالت کې هم له هغو څخه د اجازې اخستل ضروري دي . یو وخت حضرت عطار ؓ له حضرت ابن عباس ؓ څخه پوښتنه وکړه : زما خور له ماسره په یوه کور کې اوسېږي او د هغې ساتنه هم زماپه غاړه ده ، نو ایا په دغه صورت کې هم زما لپاره کورته د ورننوتلو پروخت اجازه اخستل ضروري دي ؟رئیس المفسرین حضرت ابن عباس ؓ ورته وفرمایل ، هو ؛...... حضرت عطار ؓ دوهم ځل ترې وپوښتل ، خو هغه بیا هم دغه ځواب ورکړ ، خو کله چې ورڅخه درېیم وار وپوښتل شول ، نو هغه ؓ وفرمایل: ایاته دا خوښوې چې هغه په داسې حالت کې ووینې چې لوڅه وي ؟ حضرت عطار ؓ وویل نه. نو حضرت ابن عباس ؓ ورته وفرمایل چې ته ځکه باید له هغې څخه اجازه واخلې چې تر اجازې له مخه تاته دا پته نه لګېږي چې هغه به په څه ډول حالت کې قرار لري. له حضرت حذیفه ؓ څخه پوښتنه وشوه چې: که څوک د مور د لیدو کتو لپاره ورځي نو هم اجازه اخستل ورته ضروري دي ؟ هغه مبارک وفرمایل هو :...... که اجازه وانخستله شي نو د دې ډېر امکان

کېدای شي چې تاسو په داسې حالت کې هغه ووینئ چې په دغه حالت کې هغې ته ورتلل اود هغې لیدل د هغې د خپګان او پرېشانۍ سبب ګرزي ، او دا مور ته یو ډول تکلیف ورکول دي او دا څرګنده خبره ده چې د مسلمان ته تکلیف رسول نارواکار دي . له پورتنیو حدیثو څخه معلومه شوه چې په کوم کور یا ځای کې چې مور یا خور له چاسره ګډه اوسېږي هم ورته د ورتلو په صورت کې اجازه اخستل ضروري دي.

**د خپل کور پېژندنه :**

لکه چې مونږ تر دې ځایه رارسېږو ، نو دټولو نژدې قریبانو له ډلې د یوې خپلې منکوحې بي بي حکم شو. هغې ته بې اجازې ورتلل روادي او هغه کورته چې خاوند پکې صرف خپلې مېرمنې سره ژوند کوي د ورننوتلو پر وخت د اجازې ضرورت نشته او هغه کور خپل کور بلل کېدای شي . اوله دغه څخه بغیر د نوروټولو کورو لپاره اجازه اخستل ضروري دي که د مېرمنې سره په کور کې بل څوک هم ؤ یا څوک مېلمه هلته راغلی ؤ ، نو بیا کور د هغې بلل کېږي او د خاوند لپاره د ورننوتوپر مهال د اجازې اخستل ضروري دي . نو خپل کور هغه کورته ویل کېږي چې یا خو یو څوک پخپله تنها پکې اوسېږي او یا ورسره صرف خپله مېرمن هلته اوسېږي ، دا فرق نه کوي چې دغه کور د هغه اصلي ملکیت دي او که په کرایه یې نیولی دي او یا یې دلنډ وخت لپاره له بل چا څخه غوښتی دي. که له یو چا څخه په کرایه نیول شوی ، یا دلنډ وخت لپاره چاته ورکړل شوی وي هم د کور



(ځای) اصل مالک ته دا اجازه نشته چې بغیر له اجازې اخستلو هغه کور ته ننوزي.

**خپل کور ته د راتلو سنت طریقه :**

په کوم کور کې چې صرف خاوند او د هغه مېرمن اوسي ، نو د خاوند لپاره که څه هم هغه کور ته د ورتلو پر وخت اجازه اخستل واجب نه دي ،مګر سنت او مستحب طریقه داده چې دغه دنګه کورته هم د هغه کور خاوند باید په ناڅاپي ډول ورنه شي ، بلکه تر ورننوتولو له مخه د خپلو پښو په درب سره او یا په کومه به طریقه سره خپله مېرمن له خپل راتګ څخه خبره کړي. له حضرت عطار ؒ څخه پوښتنه وشوه چې د خپلې منکوحې بي بي کور ته به هم بغیر له اجازې نه ورځو ؟ هغه مبارک وفرمایل ، هلته په ورتلو کې د اجازې ضرورت نشته – ابن کثیر د دغه روایت د نقل تر څنګ فرمایي: له دې څخه مقصد دا دی چې د اجازې اخستل واجب نه دي ، خو مستحبوالي او بهتري پکې دلته هم شته. که څه هم خپل کور ته د ورتلو پر وخت خو د دې ضرورت نشته چې څوک دې له خپلې مېرمنې څخه اجازه واخلي ، خوله خپل راتګ څخه خامخا باید هغه خبره کړي ، ځکه چې امکان شته چې د خاوند د ورتلو په وخت دې د هغه مېرمن په داسې حالت کې وي چې دا نه غواړي چې خاوند یې په دغه رنګه حالت کې ووینې . د مثال په ډول مېرمنو ته دا خبره بده ښکاري چې د خاوند په حضور کې غسل وکړي او دخاوند په باب هم د دې وېره شته چې په داسې حالت کې د مېرمنې لیدل دې د هغه لپاره د نفرت سبب وګرزي .... له

دو حدیثونو او روایتونو څخه څرګنده شوه چې په بېلا بېلو ځایو کې د اجازې اخستلو سببونه هم رنګارنګ او جلا جلاوي خو یو له هغو دا احتمال دي چې کور مېشت دې په لوڅ حالت کې وي. کېداى شي چې هغه څوک چې تاسو ورځي ستاسو د ورتلو پر وخت د لوڅوالي په حالت وي –له دې څخه دا خبره معلومه شوه چې د هر چا چې درته ستر لیدل روا وي هلته د اجازې اخستلو ضرورت نشته (خو ډېره ښه خبره به داوي چې دوى خبر کړئ ) او د چاچې درته د ستر لیدل روا نه دي هلته اجازه اخستل ضروري دي. او په هغه ځاى کې چې له خاوند سره صرف خپله مېرمن اوسي که د بل چا دراتلو امکان نه ؤ ، نو د اجازې ضرورت نشته ، او که د بل چا د راتلو قوي امکان ؤ نو بیا هلته هم د اجازې اخستل ضروري دي. په دې پوهېدل هم د سړو لپاره ضروري دي چې د خپلو مېرمنو ستر لیدل که څه هم روا دي خو دا یو مناسب کار نه دي. د حضرت عائشې رضي الله عنها د یو حدیث مفهوم دي چې مونږ په ټول ژوند د یو او بل ستر و نه لیدل. حضرت زینب رضي الله عنها فرمایي چې زما خاوند حضرت عبد الله ابن مسعود ؓ چې به کله کورته راتلی، نو په لوړ غږ به ئي خبرې کولې تر څو په دې سره د کور وال د هغه له راتلو څخه خبر شي. له دې امله امام احمد رحمة الله علیه صراحت کړی دي چې خپل کورته د داخلېدلو پر وخت ټوخی کول او یاله پښو څخه اواز پیدا کول مستحب کار دي (ابن جریر و ابن کثیر) حضرت مجاهد ؓ دعامو مفسرینو بر خلاف د تَسْتَأْنِسُوْا معنې په داسې ډول هم کړې ده چې ټوخی کول د دروازې کړی یا ځنځیر سوکه



ټکول او په نرمي سره خبرې کول او یا له پښو څخه اواز پیدا کول او یا د بلې داسې مناسبې ذریعې کارول چې له امله یې د کور خاوند د بل چاله راتګ څخه خبرېږي ټول د اِسْتِیْنَاس تر لفظ لاندې راځي په دې اړوند د حضرت مجاهد دلیل په لاندې ډول دي:

(اخرج ابن حاتم عن ابی سورة ابن اخي ابّي ایّوب قال قلت یارسول الله هذا سلام فماالاستیناس،قال یتکلم الرّجل بتسبیحة وتکبیرة وتحمیدة ویتنحنح فیؤذن اهل البیت. (الحدیث) (تفسیرابن کثیر)

ژباړه: له حضور ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې په سلام خو مونږ پوهېږو ، خو استیناس طریقه څنګه ده ؟ حضور ﷺ وفرمایل د سبحان الله یا الحمد لله یا الله اکبر په لوړ اواز ویل او یاغاړې تازه کول تر څو د کور وال وپوهېږي چې یو څوک کورته د ننه راتلونکی دی.

**د اجازې اخستلو لپاره د دریدلو سنت طریقه :**

کله چې تاسو غواړئ له یو چا څخه د هغه د کورته د ورننوتلو اجازه واخلئ ،نو تاسو باید دروازې ته مخامخ ونه درېږئ ،تر څو د اجازې اخستلو مقصد هم په ځاى شوی وي او د بې پردګي له بدي او خباثت څخه مو هم ځان ساتلی وي. په دې اړه د حضرت عبد الله بن بشر ؓ روایت دي اذا تی باباً یرید ان تستأذن لم یستقبله جاء یمیناً وشمالاً فان أذن....... والاّ انصرف.........(ادب المفرد )

ژباړه: کله چې یو څوک د بل چا دروازې ته د اجازې اخستلو لپاره ورځي ، نو د دروازې مخامخ طرفه څخه دې نه ورځي بلکه له ښي یا کیڼ(چپ) طرف څخه دې ورشي. که اجازه ورته ورکړله شوه خو ډېره

ښه ، او که ورنه کړله شوه نو واپس دې لاړشي . د ابوداؤد شریف په روایت کې دي چې کله به حضور ﷺ د چا کورته ورتلی ، نو دهغه دروازې ته به بالکل مخامخ نه دریدی ،بلکه په یو طرف به دریدی او بیا به یې په لوړ اواز سلام ویلو په عین دروازه کې له دریدلو څخه به حضور اقدس ﷺ له دې وجې هم ځان ساتی چې پخواخو یعنې په هغه زمانه کې خو په دروازو باندې د پردې اچولو رواج نه ؤ او که به بیا پرده هم وه نو داسې پرده به وه چې د لیرې کېدوبه یې ډېر امکان لرلو. یو څوک د حضور ﷺ څخه د اجازې اخستلو لپاره د هغه مبارک دروازې ته مخامخ ودریدی نو حضورﷺ هغه ته په دې ډول سپارتنه وکړه چې دروازې ته باید په داسې ډول ودرېږې چې ستا نظر د کور په داخل ونه لګېږي ، ځکه چې د اجاې اخستلو قصد دغه دي.

**د حضرت عمر ؓ واقعه**

حضرت عمر فاروق ؓ یو وخت د شپې له پلوه په ګښت وتلی ؤ چې ناڅاپه یې د یوسړي اواز واوریدی . چې اوازونه (غزلې)یې ویلې ،حضرت عمر ؓ پر دیوال وړته وکتل نو ویې لیدل چې هلته شراب هم شته او ښځې هم شته ، نو هغه ته یې ناری کړې او ورته ویې ویل : ای د خدای ﷻ دښمنه ! ایاته په دې پوهېږې چې ته د الله ﷻ نافرماني کوې ؟او الله ستا دغه حال له خلکوپټ ساتلی او ستا پرده یې کړې ده ؟ هغه ورته په ځواب کې وویل : ای امیرالمؤمنینه ! تلوارمه کوه که مایوه ګنا کړې ده ، نو تا درې ګناهونه کړي دي (۱) پاک خدای ﷻ تجسس منعه کړی دي او فرمایي چې (ولاتَجَسَّسُوْا ) (۲) پاک خدای



ﷻ حکم کړی دي چې د خلکو کوروته د دروازې له لارې داخلېږئ او فرمایي چې (وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا ) (۳) پاک خدای ﷻحکم کړی دي چې بغیر له خپلو کورو، د نوروکوروته بغیر دهغوله اجازې مه داخلېږئ او فرمایي چې (لَاتَدْخُلُوْا بُيُوْتاً غيرَبُيُوتِكُمْ ) خو ته زماله اجازې څخه بغیر زماکورته داخل شوی یې . د دغه ځواب په اورېدو سره حضرت عمر ؓ په خپله غلطي اقرار وکړ او د هغه په خلاف یې هیڅ هم ونه کړل ، خوله هغه څخه یې په کلکه دا لوز واخست چې ښه اونېکه لاره به خپله وي.

**د کور د ننه ته د پټ ، پټ ورکتلو ممانعت :**

د اجازې په اخستلو کې یوه ګټه دا هم ده چې که یو څوک د څه شي ښکارول تاسو ته ونه غواړي ، نو تاسو که هم له هغه څخه خبربیدای نشئ ،نو که تاسو د کور داخل ته پټ پټ په غلا وګورئ نو دا ګټه له مېنځه ځي په احادیثو کې د دې کار سخته منعه راغلې ده. د رسول ﷺ خدمتګار حضرت انس ؓ فرمایي چې یو چا له بهر څخه د حضور ﷺ حجرې ته پټ پټ ورکتل په دغه وخت کې حضور ﷺ یو غښشی په لاس کې اخستی ؤ هغه غیښی یې په داسې ډول د هغه په لوري وغورزاوو لکه چې غوښتل یې چې په نس کې ولګېږي. همدا رنګه په یو حدیث شریف کې راغلي دي (لا یحلّ لامرءٍ ان ینظر الی جوف بیت حتی یستأذن فان فعل فقد دخل ) (بخاري شریف ومسلم شریف)

هیڅ یو مسلمان ته روانه دي چې د بل چا کورته پټ پټ ور وګوري. که یو چا داسې وکړل نو هغه داسې دي چې ګویا هغه ته داخل شو. نو

له پورته احاديثو څخه څرګندېږي چې په شريعت کې د چاکورته د پټ کتلو سخته منعه راغلې ده.

## د حضرت عمر فاروق ؓ فتوی :

عن عمر ؓ بن الخطاب من ملأ عينيه من قاعة بيت قبل ان يؤذن له فقد فسق ) له حضرت عمر ؓ څخه روايت دی چې که يو چا تر اجازې اخستلو له مخه د کور مينځ کې خپل نظر خپور کړ ، نو هغه د نافرمانۍ مرتکب شو . له دې څخه معلومه شوه چې د چاکورته بې اجازې ورکتل هم روا نه دي بلکه طريقه يې داده چې که دروازه پرانستې وي ، يا تاسو د چاکورته له هغه لوري ورتلونکي ياست چې د کورداخلې برخه درته مخامخ وي ، نو د هغه مخامخ مه دربېږئ ، او که څوک دا رنګه عمل کوي ،نو د حضرت فاروق اعظم ؓ له فتوی سره هم هغه فاسق بلل کېږي. (عن ابي هريرة انّ رسول الله ﷺ قال اذا دخل البصر فلااذن له ) له حضرت ابوهريرة ؓ څخه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل چې: هر کله د يو چانظر د کور په داخل باندې ولوېدی نو له هغه سره د اجازې اخستلو حق پاته نه شو . هغه ګويا د اسلامي قواعدو سرغړونه وکړه او ځان يې ګنهګار کړ.

## د سترګې ړنديدلو مسئله :

دهغه چالپاره چې دبل چاکورته پټ پټ ګوري ،سخت وعيد(سزاورکولو ګواښ ) فرمايل شوی دی:

( لوانّ امراء اطلع عليک بغير اذن فخذفته بحجارة ففقأت عينه ماکان عليک من جناح ) (الحديث)



حضور ﷺ وفرمايل: که يو چاستابې اجازې ستا کورته درکتل او تاهغه د دغه کار په وجه په ډبره وويشتی چې له امله يې د هغه سترګه ووتله نو په دې سره ستاهيڅ ګناه نشته ، غالباً چې ګناه به له دې وجې نه وي چې هغه بغير له اجازې د کور داخل ته دکتلو هڅه کړې ده او په دې ډول يې په کور کې د ننه د ښځو دليدلو بده اراده کړې ده چې له امله يې لويه فتنه هم راولاړېدای شي . که هغه د خپلې سترګې د ړندېدلو راپور د محکمې د قاضي مخته کېږدي نو قاضي به د هغه په حق کې فيصله نه کوي او نه به د هغه د سترګې په ايستونکي باندې د ديت ورکولو حکم کوي. د امام شافعي رحمة الله عليه مسلک دا دی چې د داسې چې سترګه ړندول (ايستل ) روا دي. امام ابو حنيفه رحمة الله عليه له دې څخه دا مطلب اخلي چې دغه حکم يواځې په پردې کور کې بغير له اجازې د نظر اچولو په صورت کې نه دي بلکه په هغه صورت کې دي چې کله يو څوک د بل چاکورته په خاموشۍ کې ننوزي او بيا د کوروالو لخوا د واپس بهر کولو پر وخت د هغه سترګې يا دبدن کومې بلې برخې ته تاوان ورسېږي،نو هغه د کوروالو ګناه نشي ګڼله کېدای (احکام القرآن جصاص )

## د ړانده د نظر حکم:

فقهاؤ د نظر په حکم کې اورېدل هم ورګډ ګڼلي دي د مثال په ډول که يو ړوند د بل چا کورته پرده لرونکې ښځې دي د هغوی نظر خو حتماً په دغه ړانده باندې لوېږي . همدارنګه هغه د کور والوغږونه بغير له اجازې اوري . دغه شيان هم د نظر په څېر د تخليې په حق کې د بې

ځایه مداخلت په حکم کې دي ، همدا راز که په دغه کور کې څوک نامحرم وي نو دهغه نظر خو لازماً په ړانده باندې لوېږي . نو سره له دې چې ړوند خو هغه نشي لیدلای خوبیا هم ګنا ه له هغه سره یورنګه ده لکه چې وینې یې . حضورﷺ دغه حق کورته تر ننوتلو پورې محدود پرې ایښی نه دی بلکه هغه یې یوعام او ټول ګډحق ګرزولی دی چې له مخه یې د چا کورته پټ پټ کتل ، او یا دهغه بې اجازې خارل او آن تر دې چې دبل چا د لیکنو او ذاتي کاغذونو بې اجازې کتل یې هم منعه کړي دي او د ابوداؤد شریف په یو حدیث کې فرمایي : من نظر في کتاب اخیه بغیر اذنه فانّها ینظر في النّار. (الحدیث)

ژباړه : یو چا چې د خپل مسلمان ورور خط بغیر د هغه له اجازې وکتلو نو هغه ګویاداسې دي لکه چې په اورکې یې وکتل . ( له په اورکې کتلو څخه په غیر مستقیم ډول عذاب مراد دي . په ننني ژوند کې زمونږ خلک بالکل د دې پروانه ساتې . که د ډاکخانې کار کونکي یوچاته د بل چا لیک ورکوي نو هغه یې تر رسولو له مخه یو ځلې په خپله ګوري ، همدا رنګه که تاسو وغواړئ چې دیو چا په لاس خپل یو دوست یاچاته د لیک یوه پارچه ولېږئ نو په لاره یې وروړونکی یو ځلې په خپله ګوري او لولي . او بالاخره زمونږ په ټولنه کې دغه عادت دومره عام شوی دي چې اوس مونږ ته بالکل د دې خیال او احساس نه پیدا کېږي چې مونږ بد کار کوؤ او حال دا دی چې دغه شیان ټول په حدیث کې د سزا ورکېدلو په ګواښ (وعید) کې داخل دي . د حدیث شریف اصل مقصد ، او پکې زمونږ لپاره خاص



درس دا دي چې په نفسي خواهیشاتو چې په ظاهره ډېر خوندور او مرغوب معلومېږي مونږ وپوهوي چې د هغو اخېر د دوزخ دردناک عذاب ته ورتلل دي چې د هغه عذاب یوه لحظه به له انسان څخه د سترګو په رپ کې د ټول عمر عیش او ارامي هېروي - او دهغې ژوند خاتمه یا اخېربه (چې پکې د خدای ﷻ د احکامو پابندي کېږي او مونږ ته ګرانه او سخته معلومېږي ) جنت وي چې په هغه کې به د همېشه لپاره د بخښنې او ارامي سامان موجود وي ، یعنې داسې یو جنت چې ددنیا په یو انسان به د هغه خوا هم نه وي لګېدلې .

**د اجازې غوښتلو تر څنګ د سلام اچول :**

په ایت شریف کې د دؤو شیانو ذکر شوی دي ، د اجازې غوښتلو ، او د سلام اچولو طریقه ئي هم ښوولې ده چې سلام اچول ډېر محبت او ګډون د خلکو په زړو کې پیدا کوي . په دې اړوند حضور ﷺ ارشاد مبارک دي . عن النّبي ﷺ لا تَدْخُلُوا الجَنّةَ حَتیٰ تُؤْمِنُوْا ولاتؤمنوا حتّی تحابّوا ، الادلکم علی ما تحابون به ؟ قالوا بلی یارسول الله ﷺ قال افشوا السّلام بینکم . ژباړه : حضورﷺ وفرمایل چې تاسو خلک به تر هغه وخته پورې جنت ته داخل نشئ تر څو مؤمنان نه شئ او مؤمنان کېدای نه شئ تر څو له یو بل سره (په خپل منځ کې ) محبت ونه ساتئ . ایازه تاسو ته داسې شی ونه ښایم چې د هغه په سبب ستاسو په زړونو کې محبت پیدا کېږي ؟ صحابه کرامو رضي عرض وکړ ، خامخا هغه مونږ ته وښیه : حضور ﷺ وفرمایل : په خپل منځ کې د سلام اچول رواج پیدا کړئ . حضور ﷺ د کوروالو ته هم د سلام اچولو حکم

فرمايلى دي په دغه وخت چې په كور كې هر څوک موجود وي. په هغوباندې د سلام اچولو يوه ګټه دا ده چې كورته راتلونكي د هغه له مكان څخه ګټه اخستې ده او د احسان بدله احسان دي ( هَلْ جَزَاءُ الإِحْسَانِ إِلاَّ الإِحْسَانُ)نو ګټې رسولو لپاره يې يوداسې اصل مقرر كړچې كه يوناداراوكم حيثيته څوک يې درئيس په وړاندې استعمال كړي ،نو په لنډ ډول به يې هغه ته يوه لويه ګټه رسولې وي چې دادهر چالپاره ډېر اسانه اوښه كاروركونكي دي ، نبى كريم صلى الله تعالى عليه واله وسلم موږته دېوې ډېرې جامعې اوپه شكل لنډې دعاښوونه كړې ده ،چې الفاظ ئې په لاندې ډول دي :( اسلام عليكم ورحمة الله ) ژباړه: پرتاسودې دخداى ﷻ سلامتيااورحمت وي (الله اكبر څومره جامع (ټولنيزه ) دعاده چې وائي پاک خداى ﷻ دې تاسو له ټولوبدوشيانوة آفتونو،بلاګانو،غمواوتكليفونوڅخه وساتي ) دغه رنګه له دې خاطره هم سلام يوضروري شى ګڼل كېږي چې اورېدونكى اواز اونوړدارونكى ونه ګڼي دهغه په وېره اوډارولوكي زيادت ونشي ، هغه چې كله دخپل ځان لپاره درحمت اوسلامتي دعاء واوري نومطمئن شي ، له سلام اورېدولو وروستوكه هغه په ناقابل اظهار كارلګياوي نوهغه يوې خواته كوي اوسلام ويونكي ته دراتلو اجازه وركوي او كه دهغه راتلل يې ونه غوښتل نوانكار كوي. سربېره په هغه ، ددې لپاره چې سلام ويونكي هم دسلامتيااورحمت له دعاء څخه بې برخې نشي هغه دخپلې دعاپه ځواب كې دمقابل لوري څخه د(وعليكم السّلام الفاظ )اوري ،



## لومړى به سلام وي كه اجازه غوښتل ؟

داجازې ترلاسه كولولپاره دوه كارونه ضرورې ګڼل شوي دي ، نوپوښتنه داپيدا كيږي چې كوم يوله دوى دوو څخه دې لومړى اوكوم ورستى وى ،عَنْ اَبِى هُرَيْرَةَ فِيمَنْ يَسْتَأْذِنُ قَبْلَ اَنْ يُسَلِّمَ قَالَ لاَيُؤْذَنُ لَهُ حَتّٰى يَبْدَأَ بِالسَّلاَمِ ......(الحديث )

ژباړه:حضرت ابوهريرة رضى الله تعالى عنه فرمائي:دهغه چاپه هكله چې لومړى سلام ونه وائي هغه چاته دې اجازه نه وركول كيږي ترڅوچې په سلام سره پيل وكړي ،

عَنْ كَلْدَةَ بن حَنْبَلٍ : قَالَ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِى صلى الله تعالى عليه واله وسلم وَلَمْ أُسَلِّمْ وَاسْتَأْذَنْتُ فَقَالَ النَّبِى صلى الله تعالى عليه واله وسلم( اِرْجِعْ فَقُلْ اَلسَّلاَمُ عَلَيْكُمْ وَاَدْخُلْ ). (رواه الترمذى ،ابوداؤد )

ژباړه: حضرت كلدة رضى الله تعالى عنه فرمائي: چې زه نبى كريم صلى الله تعالى عليه واله وسلم ته ورغلم اوسلام مې ورباندې وانه چاوو ،خواجازه مې ورڅخه وغوښته ،نبى كريم صلى الله تعالى عليه واله وسلم راته وفرمايل : چې بېرته واپس لاړ شه اودبېرته راتلوپروخت لومړى سلام واچوه اوبيا داخل شه نبى كريم صلى الله تعالى عليه واله وسلم ددې لپاره چې خپل امت ته دآدابولارښوونه وكړي ،حضرت كلدة رضى الله تعالى عنه ته لومړى داجازې غوښتلوطريقه په ژبنى ډول وښودله ،اوبيائې ورباندى دعمل په ډګركې هم پلې كړه ،اوداخبره هر چاته معلومه ده چې كه يوانسان ته په همدغه ډول درس وركړل شي نوهغه بيااورڅخه هيڅكله نه هېرېږي

.داحادیثوپه مشهورکتاب (ترمذی شریفه ) کي لیکلي دي ، چې حضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنهما یووخت له قضائي حاجت څخه دراتلوپر وخت دډیرې ګرمۍ له وجې په تکلیف شو،اودقریشویوې جونګړې ته په رسیدوسره ئي وویل (السلام علیکم ) ایازه دننه شم ؟ دجونګړې خاوندورته وویل په سلامتۍ سره راننوزه،ابن عمر رضی الله تعالی عنهمابیاسلام اواجازه وغوښتل ، دجونګړې خاوندبیاهم هغه رنګه ځواب ورکړ (دجونګړې دخاوندلخواتېره جمله دهغه رضی الله تعالی عنه دعزت اودرننښت لپاره کاریدله ) اوداپه داسې حال کي ؤ، چې دهغه رضی الله تعالی عنه پښې پرځمکه دګرمۍ له امله سوزدلې کله به ئي یوه پښه پورته کړه کله به ئي بله پښه پورته کړه ،په دغه حالت کي ئي دجونګړې خاوندته وویل : چې داسې راته ووایه چې راځه :کله چې دکوردخاوندلخواهم داسې ورته وویل شول ،نوبیاهغه مبارک وردننه شو.

## درسول الله صلی الله تعالی علیه واله وسلم لاربښوونې اودصحابه کراموعمل

دسیدالمرسلین صلی الله تعالی علیه واله وسلم دلاربښوونو اواصحابو دتعامل له مخې علماء کرامونورڅه تفصیل په دې ډول کړی دی ،که په کورکي دخلکوداستوګنې برخه له دروازې ،یاداجازې غوښتلو له ځایه دومره لیرې وي چې دسلام اواز هلته نه رسیږي اویاکوردوه درې یاتر دی زیات چتونه لري اودسلام ویلو



اواز هلته نشي رسیدلای نوپه داسي ځایونوکي لومړی داضروري دي چې دوی ته په کومه بله زریعه خبرورکول شي اوبیاورڅخه اجازه وغوښتله شي اوسلام تر هغه وخته وځنډول شي ،ترڅودکورکوم غړی هغه ته داجازې ورکولو یانه ورکولو لپاره له هغه سره مخامخ کیږي .اوکه کور یاځای وړکی وی اودسلام اواز دکور خلکوته رسیدای شي نوبیاباید تر اجازې غوښتلو مخکی سلام وویل شي.
اوځینې مفسرین رحمة الله علیهم پر کوروالوباندی دسلام ویلومفهوم داهم بولي چې لومړی اجازه واخلئ اوبیاکله چې کورته داخل شئ نوبیاپه کوروالوباندی سلام واچوئ ،ځکه چې اجازه اخیستل واجب دی اوسلام ویل سنت دی . د(استیذان ) اجازې غوښتلو یوه طریقه داهم کیدای شي چې که دکور کوم غړی په مخه درشي ،نولومړی سلام ورباندی واچوئ اوبیااجازه ورڅخه واخلئ.
له عامورروایتونوڅخه چې په کومه طریقه معلومیږي هغه دا چې له بهر څخه دی تر هر څه له مخه سلام واچوي ، یعنې دالسلام علیکم الفاظ دي ووایي ، بیادی خپل نوم کوروالوته وښئي اوودي وائي چې زه فلانی یم غواړم چې له فلانې سره ووینم.
**یادونه** : دپښتنوپه ځینوسیموکي عادات اوړرواجونه متفاوت دي ، دمثال په ډول ډېر خلګ دناپوهۍ په وجه دخپل تره ،اکا،ترور، خور، وررور ،اودوستانو کورونوته پټناځاپي ډول اوبې له اجازې ننوزي ، اودلیل داوائي چې زموږ اودوي ترمنځ پرده مرده نشته ،اوموږ دیرشناخت سره لرو ، اودخپل عادت په خاطر ایاتونه اواحادیث له

نظره غورزوي ، چې دغه رنګه عادات اورواجونه باالاخیره دفساد اوفتنو سبب جوړيږي اوجوړشوی هم دی ، نوهر څوک چې دچاکورته ورځي نوتر ننوتلو مخکي بايد خپل ځان ورو پيژني مثلاً زه احمدیم غواړم له فيضان ياحاذم سره ووينم ، ترڅوکوروال دده دراتلو یانه راتلو فيصله وکړی ، اونامحرم دده دراتلو په صورة کي له دغه ځایه دوتلو اوګوښه کيدلو چانس ولري. (حصيف ، عاجز)

که دکورخاوندته له سلام اواجازې معلومه نه شي چې څوک دی ، له سلام ويونکي څخه دهغه دنوم يابله څه غوښتنه وکړي نوسلام ويونکي (ميلمه) دي خپل اصلي اوعرفي دواړه نومان ښه په واضح ډول ورته وښئي ، ترڅوهغه ورباندی وپيژندل شي ، څرنګه چې دځينوخلګوعرفی نوم ترخپل اصلي نوم زيات دخلګوپرژبه اوښتی ، اومشهور وي ،نوځکه داطريقه ډيره ښه بريښي چې خپل پوره نوم اوپته په ښه ډول ورته څرګند کړي ، ترڅودکورخلګوته دهغه په پيژندنه کي تکليف اوپريشاني پيدانه شي ، حضرت عمرفاروق اعظم رضی الله تعالی عنه به همداسي کول ،دنبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم مقام ته چې به کله هغه رضی الله تعالی عنه حاضريدی ، نودا الفاظ به ئي ويل: (السلام عليکم (علی رسول الله) أ يدخل عمر) (ابن کثير)

پر نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم باندی له سلام ويلوورسته به ئي وويل اياعمرداخل شي؟



دصحيح مسلم شريف په يوه حديث کي روايت دی ، چې کله به موسی اشعری رضی الله تعالی عنه دحضرت عمر رضی الله تعالی عنه ملاقات کاوو ،نودا جازې اخيستلو لپاره به ئي داجمله ويله (السلام عليکم هذاابوموسی) (اسلام عليکم هذاالاشعريّ) ترسلام ورسته به هغه خپل اصلي نوم ووايو اوورپسي به ئي دلاښه وضاحت لپاره خپل کورنی نوم هم ووايو ،داټول ددي لپاره چې اجازه ورکونکی اجازه اخيستونکی ښه پوره نه وی پيژندلی ترهغه په شک کی وی چې دراتلواجازه ورته ورکړی کنه ؟ نوددغواندېښنودليري کولو لپاره اجازه اخيستونکی ته لازمه ده چې خپل اصلي اوعرفی دواړه نومونه واخلی تر څو دکورخاوندپه پوره اطمنان سره دده دراتلو يانه راتلوپريکړه وکړي.

**په ډيرپوړيزه ودانيوکي داجازې غوښتل:**

که په يوه چارديوالي کي ډيري کورنۍ اوسېږي ، ياڅوپوړيز پارتمان وي اوپه هر چت کي ئي جلاجلا خلک اوسيږي ، نوددوي هره هره کورنۍ جلاجلاحکم لري ، که څه هم ددوي دوتلو اوننتولولاره (دروازه) يوه وي ، له دوی څخه که تاسو هرې کورنۍ ته ورتلل غواړئ نواجازه ضرورده ، په دغه رنګه کوروکي تاسو له پردوڅخه له ښکاره اجازې اخستلوورسته داخل شئ ، داجازې په اخستلوکي هيڅکله هم دبدئ اوسختۍ احساس مه کوئ ،ځکه چې اجازه داسي يوکاردي چې ډيرزيات مفاسدله منځه وړي ،دفساداوفتنومخه نيسي.اودغه کارددواړو(اجازه اخستونکي ،ورکونکي ) لپاره ډير

ګټور دی ، نو نه باید د خدای ﷻ دغه حکمونه خوار و کمزوري ګڼل شي ، ار
ورته بې ګټې شیان وویل شي ، دغه احکام چې په ظاهره ډېر وا
او جزئي ښکاریږي ، خود خدای ﷻ په قانون کې د حد تر درجې اهمی
لري.

**د( څوک ئي ؟ ) په ځواب کې (زه یم ) ویلو منعه** :

داجازې په غوښتلو کې یوه ډېره بده طریقه داده چې ځینې خلک
داعادت لري کله چې دروازه وټکوي یا ګینټۍ ووهي
نو د کور لخوا ورته اواز راشي چې (څوک ئي ؟ ) هغه په ځواب کې
ورته ووائي (زه یم ) او یا چوپه خوله دریږي ، نو که د کور خلکو ته
خپل نوم یا نور څه ورونه ښئي ، نو دا یو بدعادت او د کور خلک په
تشویش کې اچول دی ، په دی سره داجازې اخیستلو ګټه له مینځه
ځي ، او په حدیث شریف کې هم د( زه یم )کلمه خوښ کړل شوي نه دي
، خطیب بغدادي رحمة الله علیه په خپل تاریخ کې د علی بن عاصم
رحمة الله علیه په واسطه نقل کوي، چې هغه دبصرې ښارته ولاړې
او هلته د حضرت مغیره بن شعبة رضی الله تعالی عنه لیدو ته ورغلې
، او دروازه ئي ورو ټکوله حضرت مغیره رضی الله تعالی عنه د کور له
داخل څخه ورڅخه پوښتنه وکړه چې ( څوک ئي ؟ ) هغه ورته وویل (
انا ) (زه یم ) حضرت مغیره رضی الله تعالی عنه ورو ته وفرمایل چې
زما په دوستانو کې خو هیڅوک داسې نشته چې هغه (انا ) نومیږي
بیا حضرت مغیرة رضی الله تعالی عنه بهر راووتې او هغه ته ئي
یو حدیث وښودی چې یو وارې حضرت جابر بن عبدالله رضی الله



تعالی عنه دخپل مړشوي پلار دفرض اداکولو په سلسله کې دنبی
کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم په خدمت کې حاضرشو
او اجازې اخیستلو لپاره ئي دروازه وټکوله نو نبی کریم صلی الله
تعالی علیه واله وسلم دکورله دننه ورڅخه پوښتنه وکړه چې څوک
ئې ؟ نو حضرت جابر رضی الله تعالی عنه په (انا) سره ځواب ورکړ،
نو نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دزجرا و خبرلو په طور ورته
وفرمایل ( انا ، انا ) ) هغه مبارک دغه د(زه یم ) لفظ خوښ نه کړ ځکه
چې د(زه یم ) په لفظ سره خود کور والو ته دا نه معلومیږي چې د کور په
دروازه کې څوک دي ؟، ترڅو چې هغه خپل اصلي او عرفي نوم وانه
خلي.

**داجازې غوښتلو لپاره مناسبې جملې**

دبشریت مهربان او ستاد حضرت محمد صلی الله تعالی علیه واله
وسلم موږ ته داجازې غوښتلو طریقه او دهغې الفاظ هم ښودلې دی ،
چې په مثال کې ئي دابوداؤد شریف دغه حدیث شریف راوړای شو ،
(جَاءَ رَجُلٌ مِنْ بَنِي عَامِرْ اِلَى النَّبِي صلی الله تعالی علیه واله وسلم
فَقَالَ أَأَلِجُ فَقَالَ النَّبِي صلی الله تعالی علیه واله وسلم لِلْجَارِيَةِ أُخْرُجِي
فَقُولِي لَهُ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَأَدْخُلُ فَانَّهُ لَمْ يَحْسَنِ الاسْتِئْذَانَ قَالَ
فَسَمِعْتُهَا قَبْلَ اَنْ تَخْرُجَ اِلَى الْجَارِيَةِ فَقُلْتُ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَأَدْخُلُ فَقَالَ
وَعَلَيْكَ اُدْخُلْ فَدَخَلْتُ .(الحدیث )
ژباړه : له بنی عامر څخه یو سړی دنبی کریم صلی الله تعالی علیه واله
وسلم په خدمت کې حاضرشو ، او ئي ویل ( أ ألج ) زه دردننه شم ؟ نبی

کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ویوې مینځي ته وویل: دغ
نفر داجازې اخیستلو په طریقه باندې نه پوهیږي ، هغه بهر ووباس
اوطریقه ورته وښیه اوپوه ئي کړه چې دغه رنګه ووایه:
(السلام علیکم اأدْخُلُ؟) ایازه درشم ؟ هغه نفروائي چې دغه دنبی
کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم خبره دمینځي تررا تلومخکې ما
واوریده ، نوځکه مې په دوهم وار دهغه صلی الله تعالی علیه واله
وسلم له ارشادسره سم کاروکړ،نونبی کریم صلی الله تعالی علیه واله
وسلم راته وفرمایل( وَعَلَيْكَ أدْخُلْ ) یعنی ماته ئي اجازه راکړه چې
زه هلته ورشم ، اوبیازه هلته ورغلم ، نوله دې څخه معلومه شوه چې
دهغه رهبر خوښه کړې طریقه داده( اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ أدْخُلْ )داجازې په
الفاظوکې بایدد(أدْخُلْ ) لفظ استعمال شي ، چې معنی ئي داده (
ایازه کولای شم دالته درشم ؟ ) یاکولای شم چې حاضرشم ؟ د(أألِجُ )
دلفظ معنی داخلاقو خلاف وه ، داچې نبی کریم صلی الله تعالی علیه
واله وسلم دغه لفظ نه دی خوښ کړې ، چې شریعت دژوندانه دهراړخ
خیال ساتلی دی ، آن داچې دایې هم موږ ته ښودلې ده چې تاسو باید
خلکوته په خطاب کې څه ډول الفاظ استعمال کړئ ، ؟ اوڅه ډول
استعمال نه کړئ.

### دننه ځواب په صورت کې سنت طریقه

که تاسو دچادروازې ته ورسیدلاست اواجازه مووغوښتله خوله دننه
څخه هیڅ ځواب ترلاسه نه شو ، نوپه دغه صورة کې سنت طریقه داده
چې یوځل بیااجازه وغواړئ ، که بیاهم ځواب رانه غلي نودریم وارې



هم اجازه غوښتلای شئ ،خوکه په دریم وارې بیاهم ځواب ترلاسه نه
شو، نوبیابایدبیرته واپس ولاړشئ ، (دځواب په انتظارکې بایدونه
دریږئ ،اوکه تاسو داجازې غوښتلوبغیردخاوندانتظارکوئ ،نوهغه
تردې حکم نه لاندې کیږي ، ) له درې وارې اجازې غوښتلو وروسته
دا پوره یقین کیږي چې دکوروالوزمااواز واوریدی لکن هغه په
داسې حال کې دی چې زماځواب نه شې راکولای ،یعنې لمونځ کوي ،
یاپه بیت الخلاء کې دي ، یاغسل کوی ،یاویده دی اویاپه کوم بل
داسې کار لګیادي چې زما ورتلل ئي هلته نه خوښیږي ، اویاهغه په
کارلګیادي اوبل داسې څوک نشته چې مامنع کړي.
یوروایت دی چې حضرت ابوموسی اشعري رضی الله تعالی عنه
دحضرت عمرفاروق رضی الله تعالی عنه لیدوته ورغي ، درې واره
ئي اجازه وغوښتله خودنه جوابه په وجه بیرته واپس ولاړي ، کوم
وخت چې وروسته حضرت عمر رضی الله تعالی عنه وویل : چې
عبدالله بن قیس دلته راتلل غواړي هغه راوبولئ،هغه بهر واووتي
اووئي لیدل چې ابوموسی اشعري رضی الله تعالی عنه بیرته ر وان
شوی دی ،اوحضرت عمرر رضی الله تعالی عنه ته ئي دابوموسی
رضی الله تعالی عنه دبیرته تلو خبرورکړ ، له هغه څخه وروسته چې
کله بیاابوموسی اشعری رضی الله تعالی عنه دحضرت عمر رضی الله
تعالی عنه لیدوته راغلي ، نوحضرت عمر رضی الله تعالی عنه
وپوښتل چې ته ولي بیرته واپس تللی وي ؟ حضرت ابوموسی

اشعري رضی الله تعالی عنه ورته وويل چې دنبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم مبارک ارشاددی:

(اذا استأذن احدکم ثلاثاً فلم يؤذن له فليرجع.)

ژباړه: که له درې واره اجازه غوښتلو وروسته اجازه درنه کړل شوه نوبیرته لاړشئ. مادرې واره اجازه وغوښتله خوکله چې می هیڅ ځواب مي ترلاسه نه کړ، نوپه دغه حدیث دعمل له مخې بیرته روان شوم. حضرت عمر رضی الله تعالی عنه ددغه حدیث دصحت دثابتولو لپاره په یوه خاص اندازسره وویل چې یوڅوک شاهد راوله کنه زه به وتاته سزادرکړم، حضرت ابوموسی اشعري رضی الله تعالی عنه له هغه ځایه ولاړي اودانصارو یوې ټولۍ (ډلې) ته ورسیدی اودغه ټوله قصه ئي ورته وکړه، اوروته وئي ويل که په تاسو کې چادغه حکم مبارک اوریدلی وي نوله ماسره ولاړ شئ اوحضرت عمر رضی الله تعالی عنه ته تصدیق ورکړئ، انصارو وويل چې داحکم خوعام دی، بی شکه نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم همدغه رنګه وفرمایل اوموږ ټولو اوریدل، موږ خپل ترټولو کم عمر هلک ستاسره دشاهد په ډول لیږو. هغه ؤچې حضرت ابوسعید خدري رضی الله تعالی عنه ورسره ولاړی اوحضرت عمر رضی الله تعالی عنه ته ئي وويل چې ماهم دغه حدیث شریف له نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم څخه اوریدلی دي، حضرت عمر رضی الله تعالی عنه دغه وخت په افسوس کې شو اووئي ويل چې دنیاکاروبارله دغې مسئلې ناخبرساتلی وم.



## څوک په خاماخاراتلو مه مجبورکوئ

هر کله چې تاسو ددروازې ټکولو، سلام اچولو اویابلې طریقې په ذریعه داجازې ترلاسه کولو کوشش تردرو واروپورې تکرارکړئ، اوبیاهم له دننه څخه درته هیڅ ځواب رانه شي نوداسی مه کوئ چې هلته کښینئ اودکورخاوند دخاماخاراایستلو کوشش کوئ ځکه داکار دکوردخاوند دزورولو سبب ګرزي، اوداسلام مبارک دین کله هم دچازورول نه غواړي، اونه ئي خوښوي اوڅوک داحق نه لري چې یوڅوک په ملاقات کولو مجبورکړي، اویادهغه په دروازه کې کښیني اودهغه دتنګولوکوشش وکړي، اوداهم داسلام له نظره په هیڅ ډول سم کارنه ګڼل کیږي چې دیوچاپه دروازه کې ودریږي اوپه داسې وینایاناره سره دکورخاوندرابولي چې هغه زورونکي یااخلاقو خلاف وي، دنبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم په زمانه کې چې کوموخلکو دهغه مبارک په مجلسونوکې ګډون کړي ؤ ،هغه خلک په اسلامي اخلاقو اوآدابو روزل شوي ؤ،هغوی به همیشه دنبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دوختونوخیال ساتی، هغوی حضراتوته ددې پوره پته وه چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دالله ﷻ ددین په کاروکې ترکومې اندازې پورې مصروف ژوندتیروي، اوددغه رنګه ستومانوونکو مصروفیتونو په دوران کې به خاماخاڅه وخت دهغه دارام لپاره وي اوڅه وخت به یې دخپلو شخصي ضرورتونو دترسره کولو لپاره وي اوهمدارنګه دکورني ژوند دپرمخ بولولپاره هم څه وخت حتماً

ضرورت وي ، نوځرنګه چې اصحاب کرام ښه پوهېدل چې دنبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم کورني معاملات هم ددین دیومهم اړخ حیثیت لري نوځکه به دوی دنبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم لیدوته هغه وخت راتلل چې کله به هغه بهر ته راوتلی ؤ، اوکله چې به هغه په مجلس کې حاضر شوی نه ؤ ، نودوی حضرات به ورته په ډېرادبي اواخلاقي ډول کښیناستل اودنبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دراوتلوانتظاربه ئي کاؤ، مګردعربوپه هغه ماحول کي چې په عام ډول خلکوته دسمون روزنه نه وه رسیدلې ډېرډېربه داسي خلک هم دنبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دلیدولپاره راتلل چې په زړه کي به ئي داخیال اوفکر ؤچې هر هغه څوک چې پاک خدای ﷻ ته خلک رابولي اویادخلکو اصلاح کوي هغه هیڅکله هم دارام کښیناستلو حق نه لري ، دوی به له خپل ځان سره دافکرکاؤ، چې موږ داحق لروچې هر وخت موخه پوښتنه کول زړه وغواړي شپه وي که ورځ موږ به نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم بې چون اوچراورځواوپوښتنه به ورڅخه کوو، اوهرکله چې موږ څه غوښتنه کوو نوهغه صلی الله تعالی علیه واله وسلم به خاماخاموږ ته ځواب وائي-ځینې حضرات داسی هم ؤ ، چې بالکل له اسلامي تعلیم سره نااشنااوناخبره ؤ ، دوی به دنبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم حجرې ته ورتلل اوپه زوره ،زوره به ئي دهغه دراوتلو نعری وهلې ،دادهغودسادګي وجه وه اودغه رنګه واقعي ځله په احادیثو کي راغلي دی ،دمثال په ډول دبنی تمیمویوه



ډله یووخت دنبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دلیدلولپاره راغله ، نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم له مسجدڅخه راوتلی ؤاوحجرې ته تللی ؤ دوی له حجرې څخه دباندی ودریدل اوپه ناروئي پیل وکړاووئي ویل (یَامُحَمَّدْ اُخْرُجْ اِلَیْنَا)(ای محمده موږ ته راووزه )دادوی بې عقلې اوسادګي وه ، اودوي له اخلاقو.اوښه چلندڅخه بالکل خبرنه ؤ.

رسول الله صلی الله تعالی علیه واله وسلم ته ددوي له دغه رنګه حرکتونو څخه ډېر تکلیف رسیدی ،مګرهغه مبارک به دخپلي نرمي طبعي (حلم ) په وجه برداشت کاؤ، اخیردوي خدای ﷻ ددغه ناسم عمل له وجې ملامت کړل اوخلګوته ئي په دغه ډول هدایت وکړ.

(وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا حَتَّى تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ)

ژباړه: کله چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم په کورکي وي اوتاسو هغه په ناروسره رابولئ نودادادب سره په ټکر کي عمل دی ، بلکه خلکوته پکاردی چې انتظاروکړي ، هر کله چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دخپل ضرورت سره سم بهر راووتي نوهغه وخت دی ورسره لیده کاته وشي.

دسیدالمرسلین محمد صلی الله تعالی علیه واله وسلم ذات مبارک دبرکتونوسرچینه اودمسلمانانودټولودیني اودنیوي کارونو مرکز اودرجوع ځای ؤ ،ډېروړوکي کارهم دانسان لپاره ډېر سخت اومشکل ګرزي که دهغه داوقاتونظم موجودنه وي.

## دصحابه کرامودعمل طریقه

دحضرت رسول اقدس صلی الله تعالی علیه واله وسلم په مجلس کې ګډون کونکواوله هغه سره ملاقات کونکوته چې کوم اداب ښوول شوي ؤ،دهغوبنسټیز ټکي داؤ،چې له نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم سره په لیدوکتواوخبرواتروکي ترانتهایي حده پورې بایدادب لحاظ وساتل شي ،دهیڅ یوچااواز (غږ) بایدنبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم تراوازلوړنه وي ، هغه څوک چې له نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم سره خبرې کوي هغه بایدداله یاده ونه باسي چې داوخت زه له داسي چاسره په خبرولګیانه یم چې هغه زماسیال یاله ماسره برابر دي ، بلکه زه دالله ﷻ له سپېڅلي رسول نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم سره خبرې کوم . دپاک خدای ﷻ ددغه حکم تر نازلیدلووروسته داصحابو کرامو حال داسی شوچې حضرت ابوبکر صدیق رضی الله تعالی عنه عرض وکړچې ای دالله ﷻ رسوله ! په خدای ﷻ می دی قسم وي چې زه به دمرګ ترورځې له تاسره په داسي ډول خبرې کوم لکه یوڅوک چې چاته په غوږ کي رغیږي.

حضرت عمررضی الله تعالی عنه به هم ددغه حکم له نازلیدووروسته دومره (سوکه ) ورو رغیدي ،چې ډېرواري به نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دوهم وارپوښتنه ورڅخه کوله ،اوثابت بن قیس اواز اصلاً ډیرغټ ؤ، خوکله چې ئي دغه اية واوریدی ،نوله ډاره ئي ډیرزیات وژړل اوله ډېر تکلیفه وروسته ئي خپل غږ ډیرټیټ



کړ،له دغوقیصوڅخه کولای شوچې اندازه ولګووچې دلویانو(بزرګانو) سره په لیدو،کتو، خبروکي څرنګه کړنلاره خپله کړو.

## له مشرانوسره دلیدوکتواداب

علماؤپه صراحت سره ویلي دي چې کوم خلک په عمرکي له تاسو څخه مشران وي اویاپه علم کي ترتاسو لوړوي اویامشائخ یااستادان وي ، نوله هغوټولوسره دملاقات پروخت ددغوادابوډېرخیال ساتل پکاردي.

حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنه فرمایلی دي چې ځیني وخت به مادیوانصاري صحابي دروازې ته دهغه دراوتلو په انتظار کي ټوله غرمه تیروله ، ددي لپاره چې ماویل کله هغه دباندې راووزي بیابه زه ورڅخه دیوحدیث پوښتنه اوتحقیق کوم ،که ما له هغه څخه داجازې غوښتنه کړې وای نوهغه به ضرورماته اجازه راکړې وه مګرمادغه کارادب خلاف بللونوځکه مي دانتظار تکلیف پر ځان منلی ؤ.

حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهمافرمائي :چې کله به زه یوچاته دلیدولپاره ورغلم ،اوبیابه داراته معلومه شوه چې هغه ویده دي ، نوخپل څادربه مي هلته ددروازې ترمخ اچاوواوبیابه په انتظار درباندي کښیناستم ،دتودوخي ګرمۍ څپې به چلیدلې چې دهغوپه وجه به زماخوله اوسرپه خاوروولړل شول ،مګرزه به ترهغه وخته پورې هلته وم ترڅوبه هغه راپورته شواودخپل ضرورت لپاره به

بهرته راووتي ، نوهغه وخت به بیاماورځخه دیوحدیث په
اړوندپوښتني اوتحقیقات کول ، هغوحضراتوبه راته ویل چې تاښه
نه دي کړي چې دلته په دغه بدحال کي انتظارشوی ئي موږ به دی
خبرولو، اومابه په ځواب کي ورته ویل چې زمازړه دانه غوښتل چې
تاسوزماپه خاطر دخپلوضروریاتو ترپوره کولومخکي بهر ته
راووزئ ،نوداخبره ددې دلیل دي چې اصحاب کرامو رضی الله
تعالی عنهم اوتابعینو رحمة الله علیهم هم
دخپلواستادانواومشائخوپه حق کي ددغوادبونوډیرخیال ساتلی
دی ،ځکه چې دوی هم دانبیاؤ وارثان ؤ،اوددې دلیل دادی چې
یوخت نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ابودراء رضی الله
تعالی عنه ولیدی چې هغه دحضرت ابوبکرصدیق رضی الله تعالی
عنه ترمخ روان ؤ، نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ورته
وفرمایل : چې ګوره ته دداسې چاترمخ روان ئی چې هغه په
دنیااواخرت ترتابهتردي اوبیائي وفرمایل :چې په دنیاکي
لمرپرداسې چانه دي ختلی ، نه لویدلی چې هغه ترحضرت
ابوبکرصدیق رضی الله تعالی عنه بهتراوغوره وي.( روح البیان )
جضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهمافرمائي: چې په کوم قوم کي
دعالم مثال دنبی په څیردي ،الله ﷻ دنبی په شا ن کي فرمایلي دي:
چې تاسو بهرته دهغه دراوتلو انتظار وکړئ. حضرت ابو عبیدة رضی
الله تعالی عنه فرمایي: زه دیوعالم دروازې ته ورغلم خودروازه مې



ونه ټکوله بلکه دهغه انتظار مې وکړماویل چې هرکله هغه بهرته
راووزي هغه وخت به زه له هغه سره لیده کاته کوم.(روح المعانی)
له پورتنیوواقعوڅخه معلومېږي چې داهم ادب دی چې بغیرله دې
چې مشائخ اواستادان له خپل راتګ څخه خبرکړئ په بهر کي دهغوی
انتظار وکړئ ، هر وخت چې دوی په خپل طبیعت بهر ته راووتل
،نوبیااورسره وګورئ ،دعلم زده کونکي بایدله دې واقعوڅخه درس
واخلي چې اصحاب کرامو رضی الله تعالی عنهم اجمعین ) به
دیوحدیث دزده کولو لپاره په دروازه کي کښیناستل خوکه نن
سبادخلکوحال وګورونوډېر فرق سره لري ، اوداحال ډېر خراب اوله
ادب څخه لیرې دي.

## دادب احترام اوثمره

داخوهمداادب ؤچې حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنه ته
دبحرالعلوم لقب ورکړل شو، هغه به سره له دي چې د نبی کریم صلی
الله تعالی علیه واله وسلم داکا(تره ) زوی هم ؤ،او نبی کریم صلی
الله تعالی علیه واله وسلم ته ډېر نژدي هم ؤ ، داټوله ددغه ادب
اودغوقربانیوثمره وه ، که هغه دځه ځان پلوې اوځان لوړیللوپه رنځ
مبتلاشوي وای ، نودغه لوړې مرتبې (چې هغه ئي دعزت دبام عروج
ته ورساوو ) ځرنګه ترلاسه کړي وای ، نبی کریم صلی الله تعالی
علیه واله وسلم ارشاد مبارک دی : چې له هر چاڅخه چې علم
حاصلوئ له هغه سره په تواضع مخامخ کېږئ ، په بخاری شریف کي
له حضرت مجاهد رضی الله تعالی عنه څخه نقل شوی دي : چې

دحضرت علی رضی الله تعالی عنه ارشاددي : ((له چاڅخه چې ماصرف يولفظ زده کړي وي هم ،زه دهغه غلام يم که مې ازادوي که مې خرڅوي.)) دغوارشاداتواودحضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهماعمل ته په فهم سره پکاردي چې څه ناڅه پرخپله معاشره هم نظرواچوواووګوروچې زموږدمعاشرې (ټولنې ) حالت څنګه دي په ننني ټولنه کي دصاحبزاده غړ يانوم دکېنسرشکل غوره کړی دی ، څومره صاحب زادګان شته چې دخپل نېک خويه اوپاک زړه لرونکو پلرونودعملونو وارثان دي ؟ په دې خبره ډيرفکرکول پکاردي چې اياصاحب زاده پيدايشي همدغه رنګه وي اوکه بې وروستنې حالات دغه رنګه کوي اودغه ځای ته ئې رسوي ، نوبيابه دامعلومېږي چې په دې کي ترټولوزيات لاس دناپوهانومريدانواوعقيده لرونکودی چاچې په عبادت خانه کي هغه صاحب زاده دمعبودتردرجې رسولی دی ، يوداسې څوک چې له خلګوسره ئې دملاقات پروخت خپله ټنډه (تندی ) ډيرتريو نيولي وي خودصاحبزاده په مخکې په زنګنونوکښيني. اسلام ډيرپه کلکه دشخصيت پرستې مخالف دی ځکه شخصيت پرستې دبت پرستې وسيله ګرزي موږ بايدديته سوچ وکړو چې ايا موږ بت پرستې ډيره پرمخ نه بوولې ؟ اوحال دادی چې په اسلام کي دبزرګې سروکارله تقوی سره دی . په دغه ډول نه وي،داچې موږ دغيراسلامي طريقې پلوي (تائيد ) کوو بلکه ددغوصاحب زادګانو(اخندزاده ګانو)آينده هم خرابوو ، ځکه چې که موږ يوکم علم اوکم عقل ته اخندزاده ،اخندزاده وايونوهغه په غلط



فهمي کي لويږي ، اوځان تر خپل اصليت ډيرپورته ورته ښکاريږي ، اودايوه فطري خاصه ده چې که موږ يو څوک دهغه ترحقيقي حيثيت لوړبولو ،نوهغه يقينې دخپل ځان په هکله غلط فکر کوي ،اوپه کومه اندازه چې هغه ته دخپل پلار اونيکه دوراثت ساتنه اوتحفظ لازم ؤپه هغه ډول ئې نښې کولای ،له دې خاطره داوخت موږته داډيره ضروري ده چې هغوخلکوته چې داخوندزا دګانو(صاحبزادګانو) په اړوندتر مناسب حدزياته عقيده لري په خوږه ژبه ووايوچې وروره دخدای ﷻ په خاطرددغوصاحبزادګانوراتلونکي مه خرابه وه اودغه دشخصيت پرستي کارنورپرېږده. امکان شته چې دغه بې ځايه عقيده بيادومره خوره نه شي چې مخنيوي ئې زموږ له واک څخه ووزي.

**دحضرت سعدرض له کورڅخه د نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم بيرته تلل:**

داحاديثوپه يوکتاب مسنداحمد رحمة الله عليه کي له حضرت انس رضی الله تعالی عنه څخه روايت دي:چې يووار نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم ديوصحابي حضرت سعدبن عبادة رضی الله تعالی عنه کورته ورغی ، له سنتوسره سم ئې داجازې غوښتلولپاره سلام واچاوو ، سعدبن عبادة ځواب ورکړخودومره په سوکه اواز چې هغه مبارک وانه وريدی ، نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم په دوهم اودريېم واربياهم سلام واچاوو خوسعدبن عبادة رضی الله تعالی عنه په دومره ټيټ اوازځواب ورکاوو، چې نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم به نه اوريدی ، له درې واري سلام

ویلووروسته نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم بېرته روان شو ، کله چې سعدبن عبادة رضی الله تعالی عنه پوه شوچې هغه صلی الله علیه وسلم بیرته روان شو نوله شائي ورپسې منډه کړه اوعذرئي ورته وواېو، اوورته وئي ویل چې ای دالله ﷻ رسوله ! هرواری ماستااوازاوریدی اوځواب مې درکاوو، خوپه دی وجه مې په ډیرټیټ اواز ځواب درکاوو، چې ستاله خولې زمادسلامتیاډېرې دعاګانې راووزې چې ستادغه دعاګانې زمالپاره ډیرې قیمتې وی، بیا نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ورته سنت طریقه وښوده چې که دی له درې وارې څخه وروسته هم ځواب ترلاسه نه کړ نوبیرته بایدواپس ولاړشي ، له دې څخه وروسته سعدبن عبادة رضی الله تعالی عنه نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم خپل کورته بوتلی اوپه ډیرښه ډول ئي دهغه صلی الله تعالی علیه واله وسلم خدمت وکړ، اوله نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم سره ئي ډیرمحبت وکړاو نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم هغه قبول کړ.دغه رنګه نورې ډېرې واقعې هم پیښې شوې دي.

حضرت عبدالله بن زیدبن عبدربه باغ(کروندې) ته اوبه ورکولې چې دهغه زوی د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم له رحلت څخه خبرکړ،نوهغه سمدستي خپلې سترګې پټې کړې اودپاک خدای ﷻ دربارته ئي سوال وکړ چې ای خدایه ! ماچې په کوموسترګود نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ښائست لیدلی دی نورنه غواړم چې په هغوسترګوباندی نورشیان ووینم له ماڅخه



دسترګودید(بصارت) واخلې اوپه همدغه رنګ ئي دعاء قبوله شوه

داُحُدپه جنګ کې مسلمانانوته هم ډیرتاوانونه واوښتل اوهم شهیدان شول . کله چې دغه خبر مدینې منورې ته ورسیدی نوښځې دسم حال معلومولولپاره له کوروڅخه راووتلې ،یوې انصاری میرمنې دخلکویوه ډله ولیده اوهلته ورغله ، په ډېره بې صبری سره یې ورڅخه پوښتنه وکړه چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم څنګه دی ؟ له هغې ډلې څخه یوچاورباندې غږ کړچې ستاپلارشهیدشو، دالله ﷻ دغه بنده اناالله وویله اوبیائي هم په بې صبری سره د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دروغتیااوپیداکولو پوښتنه اوتلاش کاؤ، ددوې له ډلې څخه چادخپل وروردشهادت واوریدل ، چادخپل پلاراوځوک دخپل زوی یابل دوست له شهادته خبرې شوې ، خودغې انصاري میرمنې په بیابیاویل چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم چیرې اوڅنګه دي ؟خلګوورته ویل چې هغه روغ رمټ دي اورابه شي ، په دې سره دهغې زړه ارام نه شو، اووئي ویل چې هغه چیرې دی ؟ خلکودېوې بلې ډلې په لوراشاره وکړه ، چې هلته دي ، هغه میرمن په منډه هلته ورغله اوخپلې سترګې ئي دهغه مبارک په لیدلو یخې کړې اوعرض یې وکړچې ای دالله ﷻ رسوله ! ستاله لیدوڅخه وروسته هر غم زمالپاره کم اومعمولي دی.

## دحضرت سعد رضی الله تعالی عنه عمل

له نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم سره دصحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم دمحبت ډیري واقعې شته اوکه رشتیاوویل شي نودغه د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم محبت دهغوی دژوند سرمایه وه دکوم په وجه چې دځان ،مال ،اولاداوهرڅه قربانولوته هر وخت تیارؤ،په دغه لاره کي وربانديِ هیڅ ډول ویرې اوډارغلبه نه وه کړي ، ویره اودمرګ ډارئي دهغوله زړو څخه ایستلی ؤ،دوی به د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم پر حکم باندي ځان قربانول دځان لپاره یولوی افتخار ګڼلو دسعد رضی الله تعالی عنه پورته بیان شوی عمل دعشق اومحبت دغلبې په وجه ؤ، په دغه وخت کي دهغه ذهن ته داخبره رانغله چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم یوغریب کورته راغلی دي زه به سمدستي ورشم اودهغه قدم به ښکل کړم ، بلکه دهغه ذهن دېته متوجه شوچې هرڅومره چې ډیرواري د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم له مبارکي ژبې څخه د(اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ ) دوعاووزې هغومره به دغه دعاوې زمادنجات باعث وګرزي ، اوپه دنیااواخیرت کي به زمادخلاصون اواصلاح سبب شي.

له نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم سره چې دصحابه کراموکوم تعلق ؤ هغه دمحبت طبعي په درجه کي ؤبلکه که تر دې بله هم پورته درجه وي نوترهغې پورې رسیدلی ؤ،نوپه دغه رنګه محبت کي له محبوب سرڅخه بغیر هیڅ څوک هم دانسان په نظراوخیال کي



نه ورځي.له نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم سره دحضرت سعد رضی الله تعالی عنه محبت هم تردغې اندازې پورې رسیدلي ؤ، دغه رنګه حضرت سعد رضی الله تعالی عنه ته د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ذطبیعت پیژندنې په بناء دامعلومه وه چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم له ماڅخه په دغه کارنه خفه کیږي ، ځکه چې دهغه نیت اوجذبه ډیرپاک ؤ ، اوهمداسې و شول هم اودسعد رضی الله تعالی عنه په دغه عمل سره نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دهیڅ رنګه خفګان اظهارونکړ،بلکه دهغه دجذبې قدرداني یې وکړ ،څرنګه چې دهغه له دعاء څخه څرګندیږي چې ویې فرمایل: (اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ صَلٰوتَکَ وَرَحْمَتَکَ عَلٰی اٰلِ سَعْدٍ )
ژباړه: ای زماربه !دسعدپه کوروالوباندي خپله خاصه مهرباني اورحمت وکړي.

## دکوردخاونداختیار

فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا فِيهَا أَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوهَا حَتَّىٰ يُؤْذَنَ لَكُمْ وَإِنْ قِيلَ لَكُمُ ارْجِعُوا فَارْجِعُوا هُوَ أَزْكَىٰ لَكُمْ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ) دنورسورة(۱۸ایة )

په دغه ایت شریف کي څرګندارشاددي چې ترڅوتاسوته دننوتلواجازه نه وي درکړله شوی ،نوترهغوپورې مه ننوزئ ،که په کورکي څوک نه وي اویاوي ،خواجازه نه درکوي اوستاسوله ورتلوڅخه انکارکوي اویادکورخاوند پخپله تاسوله ورتلوڅخه منعه کړي، چې اوس درسره نه شم لیدلای اوس ولاړ شه ، اویادکورله دننه

ځخه هیڅ ثواب درته رانشي ، نوپه دغوټولو صورتوکي څرنګه چې اجازه نه ده درکړله شوي ،نوداخیلیدل درته نه دي روا .

دغه داجازې له ورکولو څخه انکار بایدناسم ونه ګڼو ، اونه په دې سره باید خپه شو ، بلکه دغه طریقه ډیره مناسبه اوبهتره ده ځکه چې دهر چاحال خوهمیشه په یوه ډول نه وی ، ځینې وخت انسان مجبوروي اوبهرته هم نه شي راوتلای ،نه بل داسي څوک وي چې دهغه په واسطه تاسوته خبردرکړي - چې داوخت زه په داسې حالت کي یم نوځکه تاسو ته دراتلو اجازه نه درکوم ، مونږ ته پخپله ډیردغه رنګه حالات پیښیږي ، مونږ باید نورهم په خپل ځان ورقیاس کړو، اودهغوی عذر ومنو، زمونږ لپاره دپاک خدای ﷻ په مبارک ارشادعمل کول ډیرغوره دی چې فرمایي ،(ارْجِعُوْا )بیرته واپس شئ . په دغه ایت عمل نه کول دډېروفتنواوخرابیوباعث کېدای شي ، دالله ﷻ خپل ارشادپاک دي چې زه ستاسوله کاروااودزړه له پټورازونوځخه ډیرښه خبر یم ،خدای ﷻ پوهیږي چې دکورته راتلونکي نیت څه ؤ، اوداجازه نه ورکونکي داجازې نه ورکولوعمل دڅه مجبورۍ په بناء ؤ پاک خدای ﷻ فرمایي چې که دکورخاوند دکبر په وجه هغه له راتلو څخه منعه کړی وي هم زه پوهیږم اوکه یې رښتینی عذر وي نوهم زه ورباندي خبریم پاک خدای ﷻ ددواړوله نیت اودزړه له رازونوڅخه پوره خبردی.

له مهاجرینوحضراتوڅخه نقل شوي دي : چې دوی به ډېر افسوس کاؤچې ټول عمرزمونږداآرزووه چې مونږ دچاکورته ورغلی وای



اواجازه موورځخه غوښتې وای اوبیاهغوپه ځواب کي راته ویلې وای چې بیرته واپس شئ ترڅومونږدپاک خدای ﷻ په دغه حکم دعمل کولو ثواب حاصل کړی وای. مګرعجیبه ده چې کله هم دغه نعمت زمونږپه نصیب نه شواوپه دغه ایة دعمل کولو موقع په لاس رانغله.

## په ملاقات کي ددواړواړخونورعایت

اسلامي شریعت دژونددښوادبونودزده کولو اودټولوله ضرراوتکلیف ځخه دساتلو لپاره دعدالت یودوه اړخیځ نظام جوړکړی دی ، څرنګه چې په دغه ایة کي اجازه غوښتونکي ته دالارښوونه شوي ده چې که تاته ځواب درنه کړل شو یادارنګه چې درته وویل شول چې داوخت درسره نه شم لیدلای نودکورخاوندمعذوروګڼه اوپه ښه زړه بیرته واپس شه ، دادځان لپاره نامناسب اوبدکارمه بوله . اوبغیرله څه پریشانۍ اوخفګانه ځخه بیرته واپس شه دجګړې اواوتأ ویلو،ماویلوضرورت نشته ، اوپه یوحدیث کي دملاقات ددوهم اړخ په اړونددغه رنګه ارشادمبارک شوي دي چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم فرمایلي دي:(انّ لِزُورِکَ عَلَیْکَ حَقاً ) پرتاباندي دهغه چاحق شته چې لتاسره ملاقات کوي،هغه دادی چې یاخوهغه ځان ته راوبوله اویابهر ته رووزه اوورسره ووینه ، دهغه عزت وکړه ځکه چې هغه ستامیلمه دی کوم حقونه چې شریعت میلمانه ته ورکړی دی په هغوعمل وکړه ،که دهغه کوم ضرورت په تا پورې تړلی وي اوپه تاسره پوره کېدای

شي نودپوره کولو کوشش يې وکړه ، اوکه دهغه دضرورت پوره کول
ستا په قدرت کې نه ؤ نوپه ډيره نرمه اوپسته ژبه ورته ووايه چې
ستادغه کاريادغه ضرورت درته زه نه شم پوره کولای اوپه همدغه
وخت کې داخبره يادلره چې الله ﷻ دزړونوپه هر پټ رازخبردی اوپه
دې سره ته بايددپاک خدای ﷻشکراداء کړې چې الله ﷻ تاته رتبه
،ياچوکۍ اويادومره عزت درکړې دی چې له ليرې اونژدې څخه خپل
اوپردي ټول درته راځي داټول دپاک خدای ﷻ فضل دی ، کله
يوڅوک هم بل چاته بغيرله مجبورۍ اوضرورته نه ورځي ، نوکه
معقول اوډيرعذرونه وي بيا له ملاقات څخه انکار کول نه دی پکار
ځکه چې ددواړوطرفونوحال پوره پوره خدای ﷻ ته معلوم دی -
اوخدای ﷻ ډيره ښه پوهيږي چې دهغه دمنعه کونکي عذرمعقول دی
اوکنه له بل طرفه عواموته هم پکارده چې که له مشائخو ،
استادانواويادوخت له حاکمانوسره ليدل غواړي نوپه هغه وخت کې
دې ورسره دليدلوکوشش وکړي چې هغه له خلکوسره دليدلو لپاره
ټاکلی وی ، بې له څه سخت ضرورته دې بې وخته دی دهغه ليدلوته
نه ورځي ځکه چې هر کاربايديوټاکلی وخت ولري.

## په شپه کې داجازې غوښتلو سنت طريقه

د نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم معمول داؤچې کله به
چاته دملاقات لپاره په شپه کې ورتلی ، نوپه دومره اوازبه ئې
ورباندی سلام اچاوو،چې ويښوخلکوبه اوريدلای شوای اوويده



خلک به ورباندی نه ويښيدل اوکه به څه سخت ضرورت ؤ هغه بيابله
خبره ده.

## دصديق اکبر رضی الله تعالی عنه پوښتنه

(لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ مَسْكُونَةٍ فِيهَا مَتَاعٌ لَّكُمْ
وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ)ددغه اية شان نزول: روايت دی چې
کله داستيذان اية نازل شوچې پکې بې اجازې دچاکورته دورننوتلو
منعه شوې وه ، نوحضرت ابوبکرصديق رضی الله تعالی عنه عرض
وکړ ای دالله ﷻ رسوله ! تردغه ممانعت وروسته به دقريشوتجاران
څه کوي ځکه چې دوی له مدينې څخه تر شام پورې تجارتې سفرونه
کوي اوپه لاره کې هرځای مسافرخانې جوړې شوې وې چې دسفر په
جريان کې دغه خلک په هغوکې ارام کوي خودهغوداسې ځانګړې
اوسېدونکې نشته چې ورڅخه اجازه واخستله شي ، نوپه دغه صورة
کې له چاڅخه اجازه واخستله شي ،اوپرچابايدسلام واچول شي ؟
دحضرت ابوبکر صديق رضی الله تعالی عنه ددغې پوښتنې په
ځواب کې دغه اية شريف نازل شو.

## دمتاع دلفظ څيړنه

په پورتنې اية شريف کې دمتاع لفظ استعمال شو ی دی ، دمتاع
لغوي معنی ديوشي ،لوښي په ډول استعمالول ، له هغه څخه ګټه
اخيستل دی اوله هر څه څخه چې ګټه اخستله کيږي ، هغه ته متاع
ويل کيږي ، په دغه اية شريف کې دمتاع له لفظ څخه دهغه لغوي
معنی مرادده ، يعنی په کوم کورکې چې څوک استوګنه اوژوند نه

کوي ، بلکه دسامانونودساتلولپاره وي ، نوکه دغه رنګه کوټوته دورننوتلو ضرورت پیښ شي که په یخ کي وي که په ګرمي کي که دباران په حا ل کي وي که په سم حال کي وي که ستااوسیدل هم هلته نژدې وي که دتجارت لپاره وي اوکه دتفریح ځای وی نوکولای شئ بغیر له جازې ورداخل شئ ، خوپه دې شرط چې هلته څوک نه اوسیږي ، دجابربن زید رضی الله تعالی عنه قول هم همدغه دی اودغه رنګه ځای ته داخلیدل به دنیک نیت اورشتني ارادې له مخې وی دداخلیدونکی زړه به دغلا، زنا،خلک ازارونی اودغه رنګه نوروخیالونوڅخه پاک وي ځکه چې پاک خدای ﷻ فرمایي :: زه په هغوټولوشیانوخبریم اوپوهیږم چې تاسوئې په پټه کوئ اویائې ښکاره کوئ حتی چې هغه دزړنوله پټورازونوڅخه هم پوره خبردی.

**د (غَیْرَ مَسْکُوْنَةٍ) دلفظ څخه مراد:**

په ایة کي چې د (غَیْرَ مَسْکُوْنَةٍ لفظ) راغلی دی دهغه په اړوند دزید اوشعبی رحمة الله علیهما قول دادی چې له دغه څخه مراددتجارت کونکودکانونه اودهغوګدامونه ، سرایونه ، مسافرخانې ، هوټلونه اوداسې نوردی ، یعني کله چې تجارت کونکی دوکانونه خلاص کړي اوعمومي اجازه یې وکړه اوسامان ئې هلته دخرڅولو لپاره کښیښود، نوبیادنوري اجازې غوښتلوضرورت نشته په دغه حکم کي هوټلونه اوسرایونه هم دي ، له دې څخه مرادهغه ودانۍ اوځایونه هم کیدای شي چې دکوم شخص یاقوم داستوګنې لپاره خاص شوي نه وي ، بلکه هر چا اوهرقوم ته دورتلوعامه اجازه وي نودابایدیاد



ولرئ چې کومې طبقې (نارینه ؤیاښځینه ؤ ) ته چې دهلته ورتلو اجازه نه وی دهغولپاره هلته ورتلل روانه دی ، د (غَیْرَ مَسْکُوْنَةٍ) په اړوندبیلابیل قولونه نورهم شته مګردټولو خلاصه همداراوزي چې له دی څخه رفاه عام (ټول ګټ ) ځایونه مراددي چې پکې مسجد، عبادتخانه ، دیني مدرسې ، اوښونځی (مکاتب ) هم شامل دی ، دغه رنګه روغتونونه ، ډاکخانې ، دګاډي تم ځای ، دلویوموټرواډې ، دهوائي جهازمیدان ، اودقومي جشنونواوتفریح ځایونه هم په هغه کي داخل دی ، داټول هغه ځایونه دی چې هرڅوک بغیر له اجازې اخستلو ورننوتلای شي ، همدارنګه دعلماؤ اومشائخوهغومجلسونوته هم چې دوعظ اونصیحت لپاره جوړشوی وی ، دوروتلو پروخت داجازې اخستلوضرورت نشته. اجازه پردوه ډوله ده یوصراحةً یانیغ په نیغه اجازه ده اوبله ضمني اجازه ، دمثال په ډول که مشائخوته صراحةً اجازه ورکوله کیږي نودهغوخدمتګاران ضمناً په دغه اجازه کي داخل وي ، اوکه امیرانوته اجازه ورکول کیږي نومزدوران ضمناً له هغې اجازې څخه ګټه اخستلای شي – اوکله چې بیااجازه حکمی وی ، دمثال په ډول یومشر (وزیر یاصدراعظم یابل چا ) اعلان وکړ چې له فلانې وخته بیاترفلانې وخته پوري محتاجان کولای شي چې راشي اوله ماسره ووینې. یامشائخ دهغوخلکولپاره چې هغو ته راځې یوکاغذ ولګوي اوپه هغه کي ورته دلیدو،کتووخت وټاکي نوپه هغه ټاکل ی وخت کي دورتلو په صور ة کي داجازې اخستلوضزورت نشته ،

اویادکورخاوندیوچاته وویل چې زه په کورکې وم اوکه نه وم نو کولای شي چې زموږ کوټې (کمرې ) ته راشي نودغه هم اجازه بلله کیږي همدارنګه دکورخاوندپه کوم بل لیري ځای کې ؤ اوستاله کورته ورتلوڅخه خبرشو اودرته ویې ویل چې ته دالته پاته شه زه درروان یم نوداهم دکور دخاوند له خوایوډول اجازه ده.

## په غَیْرَ مَسْکُونَۃ ځایوکې ددغوخبروخیال ساتئ:

دپورته تولوذکرشویوځایونولپاره که دهغو دزمه دارانو،سرپرستانواوحکومت لخواهغه ته دورداخیلدوکوم شرطونه ؤنوپه هغوباندی هم عمل کول واجب دی ، دمثال په ډول پارک اودغه رنګه نوروځایونوته یوخاص وخت ټاکل شوی وی اوهلته دګلانواوبوټو خرابول اوشکول منعه وي یادګاډي تم ځای ته بغیر له پلیټ فارم ( ټکټ ) څخه ورننوتل منعه وی ، نودفلیټ فارم ( ټکټ) اخستل ضروري دی ، ددغوقوانینوڅخه سرغړونه ناروا ده. په هوایي میدان کې چې کومې برخې ته حکومت دعامو خلکوورتلل بندکړي وی هغه ځای ته بغیر له اجازې ورتلل دشریعت له نظره روانه دی ، دګاډي په تم ځای (استیشن ) ، هوایي میدان اوروغتونونو(هسپتالونو ) کې هغه دفترونه اوخاصې کوټې (کمرې ) چې مریضان یانورخلک پکې استوګنه لري د (غَیْرَ مَسْکُونَۃ) تر حکم لاندی نه دی ، بکله دمسکونة په حکم کې دی. هغوته بې له [illegible]تلل روانه دی . دغه رنګه په مساجدو،مدرسو، [illegible]بادتخانو [illegible]اکخانواونوروکې چې کومې کمرې



دهغودکار کونکو(خدمتګارانو ) لپاره خاصې شوې وی ، اوخوک پکې استوګنه لري لکه په مسجدوکې دامام اومؤذن داوسیدوکمرې یاپه عبادتخانوکې دمنتظیمینو(خدمتګارانو ) کمرې اوپه مدرسوکې داستادانوکمرې ، داټولې په (غَیْرَ مَسْکُونَۃ) کې داخلې نه دی ، دغوکمروته بې له جازې ورننوتل روانه دی.

اوس پوښتنه داده چې په دغه رنګه (یعنې غَیْرَ مَسْکُونَۃ ) ځایونوکې به سلام اچول کیږي کنه ؟ اوکه اچول کیږي نوپرچاباېدووېل شي ؟ په دې اړوندهم حضرت ابوبکر صدیق رضی الله تعالی عنه له نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم څخه پوښتنه کړې وه ،

داجازې په اړوندئې وفرمایل : چې ضرورت نشته اوداچې هلته دسلام اچولو ضرورت شته کنه ؟ په ظاهر خوداسې ښکارې چې نه به وی ، ځکه چې په ایة کې فرمایل شوي دي چې: ( تُسَلِّمُوا عَلٰی اَهْلِهَا ) یعنې دکورپرخلکو سلام واچوئ ، نوکله چې په کوروياځایوکې خلک نه اوسیږي نوسلام به څرنګه وي اوپر چابه ئې اچوي ؟ مګر دلته دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهمایوحدیث شریف دی چې فرمائي : ( عَنْ نَافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ قَالَ: اِذَا دَخَلَ الْبَیْتَ غَیْرَ الْمَسْکُوْنِ فَلْیَقُلْ السَّلَامُ عَلَیْنَا وَعَلٰی عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِیْنَ )

ژباړه : له حضرت نافع رضی الله تعالی عنه څخه روایت دی چې عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما وفرمایل : کله چې تاسو یوخالي ځای یاکورته داخل شئ نووایئ :(السَّلَامُ عَلَیْنَا وَعَلٰی

عِبَادُاللهِ الصَّالِحِيْنَ) دسلامتيادغه دعاهم دخپل ځان لپاره ده [illegible]
دپاک خدی ﷻ دټولو نيکو بندګانولپاره ده که يو چا
( اجازه غوښتونکي ) ته دقاصد په ذريعه دراتلو بلنه ورکړله شي،
نوتر دې دزياتي اجازې اخستلوضرورت نشته لکه چې په يوحديث
شريف کي فرمايل شوي دي: (اِذَا دُعِيَ اَحَدُكُمْ فَجَاءَ مَعَ الرَّسُوْلِ فَاِنَّ
ذَالِكَ اِذْنٌ ) يعني يوڅوک چې راوبلل شي اوهغه له قاصد(هغه
چاسره چې ورليږل شوی وی ) راشي نودادهغه لپاره اجازه ده . [illegible]
خدای ﷻ مکړه چېرې څه پيښه وشي يعني اورولګيږي ، ياکورړنګ
شي ، يادچاکوريادوکان يابل څه ته غل ولوېږي ، ياکومه بلاياماري
کورکي راووزي يادغه رنګه بل څه پيښ شي ،نوپه دغه رنګه
پيښونيوحالاتوکي دنفس تحفظ کول دی ، لکه څرنګه چې په هرانسان
باندی دخپل ځان ساتنه فرض ده همغه رنګه دضرورت پروخت دبل
چا ساتل هم ورباندی فرض دی کله چې هغه دبل چادساتلو قدرت
ولري . دضرورت پروخت له انسان سره مرسته کول دبشريت ،
ايمانداری اواسلاميت غوښتنه اويوه ټولنيزه فريضه ده .

**دټيليفون کولو اسلامي طريقه :**

دپاکستان دمفتی اعظم اودارالعلوم ديوبندپخوانی مفتي
محمدشفيع ديوبندی رحمة الله عليه داجازې غوښتلوپه
اړوندڅونوري مسئلې هم ذکرکړې دی ،هغه(رحمة الله عليه ) ليکي
چې داجازې غوښتلوله شرعي حکمونوڅخه اصلي مقصدخلکوته له
ضرر(تکليف) رسولوڅخه ځان ساتل ، اوديوښه اوبهتر ژوندادبونه



زده کول دی فلهذاخلک بايدپه لاندينيو احکامو هم پوره ځان پوه
کړي

(۱) يوچاته داسي وخت ټيلفون کول چي عادةً هغه په دغه وخت کي
ويده وي يادغه وخت دهغه دلمانځه اويابل ضرورت وي بغير له څه
سخته ضرورته روانه دی ، ځکه چې له دې څخه هم انسان ته په هغه
ډول اذيت اوتکليف رسيږي څرنګه چې ديوچادبې اجازې ورننوتلو
پر وخت ورته رسيږي اودهغه ازادي ته زيان رسوي.

(۲) که تاسو له يوچاسره ډېروخت په ټيلفون خبري کوئ ، نوښه به
داوي چې له هغه څخه پوښتنه وکړئ چې تاته په کوم وخت کي له
ماسره په ټيلفون خبري کول اسان وي ، کوم وخت چې هغه درته
وښائي په همهغه وخت بياهغه ته ټيلفون کوئ.

(۳) که تاسو غواړئ له چاسره دټيليفون له لارې اوږدې خبرې وکړئ ،
که هغه اجازه درکړه نوبيادخپل عرض په بيانولو پيل وکړئ ،
ډېرداسي کيږي چې څوک بل چاته زنګ ( ګينتی ) وهي هغه طبعاً
مجبورکېږي چې ددې لپاره ټيليفون پورته کړي چې څوک دی اوڅه
وائي ؟ اوحال داوی هغه دټيلفون دپورته کولو لپاره ډېرضروري کار
پرېښېي وي اوبل بې رحم ورته اوږده اوږده مجلسونه کوي اودهغه
دضرورت هيڅ خيال نه ساتي ، چې له دی امله مخاطب يااوريدونکی
ډير په تکليف کيږي ؛ اوکه هغه درته ووائي چې فی الحاله وخت نه
لرم نولطفاً بل وخت زنګ ووهه نوته هم همداسي وکړه اوخپله تلفوني
رابطه دي قطعه (پري ) کړه اوپه دې سره خواهم مه بده وه ځکه چي

خدای ﷻ فرمائي: (وَإِن قِيلَ لَكُمُ ارْجِعُوا فَارْجِعُوا ) يعنی که تاسوته وويل شي چې بيرته واپس شئ نو بيرته واپس کيږئ.

(۴) کله داسي هم وي چې دټيليفون گنټي روانه وي ( زنگ وهل کيږي ) خوخلک وربانډی هيڅ کارنه لري اودومره ځان نه په تکليف کوی چې صرف چې ټيلفون پورته کړي ، اومعلومه کړي چې څوک دی اودڅه لپاره يي ټيلفون کړي دی ، داکار له اسلامي اخلاقو څخه خلاف اودټيلفون کونکی حق ضائع کول دی ، لکه چې په حديث شريف کي هم ددې ذکرشوی دی.(اِنّ لِزُوِرکَ عَلَيْکَ حَقٌّ ) يعنی دهغه چاپرتاباندي حق شته چې تاته دليدولپاره راغلی دی ، له هغه سره ووينه ياورغيږه اوبې له سخت ضرورته هغه ته انکار مه کوه ، نوپه همدغه رنگ چې څوک تاته ټيلفون وکړي نوهغه پرتاداحق لري چې ځواب ورته ورکړي ، اوکه نه غواړي چې ډيرورسره وړغيږي نوعذرورته ووايه داباېدپه يادولرئ چې دغه پورته بيان شوي مسئلې ټولې له مستحباتواوادابوڅخه دي مگر دجمهورعلماؤ په نزدله واجباتوڅخه دي ، خطيب رحمة الله عليه هم داتائيد کړي ده اوامام قرطبي رحمة الله عليه هم په خپل تفسير کي همدغه ليکلي دي اوډيروعلماؤ قول هم دغه دی – له دي هرڅه څخه مقصدصرف وصرف دادی چې دجاهلانه اوناسم روش (چلند ) مخه ونيوله شي ودناپوهانو په خيردخلکوکوروته بغيرله اجازې ورننوتل ، دخلکوپه .روازه کي په لوړ اواز نارې وهل ، په زوره ،زوره ددروازې ځنځير برنگول ، بيابيادهرن (گينټي ) وهل ، دروازه په ډيرووېشتل



همدغه ډول ټول ناسم اوله اسلامي اخلاقو سره ټکر کارونه ورک ي اوهر هغه حرکت له بيخه وايستل شي چې ورڅخه دکورخاوند ابل چاته تکليف رسېږي . دادجاهليت دزماني رواج اوعادت ؤ چې ې اجازې به په ناڅاپي ډول ديواوبل کورته ورننوتل اوډېر ځله به هغونظرونه دکورپه خلکواودهغوپه ښځوپه داسي حال کي لگېدل ې په هيڅ شان به دليدولائق نه ؤ ، نوددوي دسمون اواصلاح لپاره پاک خدای ﷻ دغه قوانين اومقررات راوليږل چې هر څوک دخپل اوسيدودځای دتخليي حق ولري ، اوبل چاته داروانه ده چې دهغه اليگاه ته دهغه بې اجازې تاوان ورسوي.

## دقران کريم اياتونه له ترجمي سره :

أيها الذينَ آمَنُوا لِيَستأذنكُمُ الذينَ مَلكَتْ أيْمَانُكُمْ وَالذينَ لَمْ
لغُوا الحُلُمَ منكُمْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ مِن قَبْلِ صَلَاةِ الفَجْرِ وَحِينَ تَضَعُونَ
ابَكُم مِّنَ الظَّهِيرَةِ وَمِن بَعْدِ صَلَاةِ العِشَاءِ ثَلَاثُ عَوْرَاتٍ لَكُمْ لَيْسَ
يكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌ بَعْدَهُنَّ طَوَّافُونَ عَلَيْكُم بَعْضُكُمْ عَلَى بَعْضٍ
لكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الآيَاتِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۵۸ وَإِذَا بَلَغَ الأطفَالُ
كُمُ الحُلُمَ فَلْيَسْتَأذِنُوا كَمَا اسْتَأذَنَ الذِينَ مِن قَبْلِهِمْ كَذَلِكَ يُبَيِّنُ
لهُ لَكُمْ آيَاتِهِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ (دسورة نور ۵۸/ ۵۹ اياتونه )

باره: ای هغو کسانو چې ايمان موراوړي دي بايد چې اجازه وغواړي هغه کسان له تاسو چې خاوندان وي ورلره ښي لاسونه ستاسي اوهغه سان چې نه وي رسيدلي بلوغ ته له تاسو څخه درې واره (يعني درې خته ) ،دسهارترلمانځه له مخه ، اوپه هغه وخت کي چې تاسوپه

غرمه کي خپلي جامې باسئ ،اوروستوله لمانځه دماخوستن څخ
درې عورتونه دي تاسولره نشته پرتاسو اوپردوی ګناه پس
دغووختونوڅخه ډیرګرزیدونکي دي په تاسو باندي بعض ستاس
بعضونوروباندي همدارنګه بیانوي خدای ﷻ تاسولره اوخدای
عالم دی اوهغه دحکمت څښتن دی. اوهغه وخت چي ورسېږي هلک
له تاسوڅخه بلوغ ته نوغواړي دي اجازه لکه چي اجازه به غوښت
هغوخلګوچې پخواتردوی ؤ همدارنګه بیانوي خدای ﷻ تاس
اياتونه خپل اوخدای ﷻ عالم دی اودحکمت خاوند دی.

له حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهماڅخه روایت دي چ
یووخت نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم یوانصاري هلک
دحضرت عمر رضی الله تعالی عنه درابللولپاره دغرمې په وخت ک
ورولیږي ، حضرت عمر رضی الله تعالی عنه ویده ؤ، هلک ب
اجازې دهغه رضی الله تعالی عنه کورته ورننوتی ، اوهغه ئي له خو
راپورته کړ ، دحضرت عمر رضی الله تعالی عنه جامې لږ سورې
اونرمې شوي وي نودهغه رضی الله تعالی عنه په زړه کي داخب
پیداشو چې کاشکي ددغه دراتلو اوتلو لپاره هم یوحکم نازل شو
وای له هغه وروسته حضرت عمر رضی الله تعالی عنه د نبی کر
صلی الله تعالی علیه واله وسلم په خدمت کي حاضرشو ، نو نب
کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دغه اية مبارک ور واوراوه
ددغه اية دشان نزول په باره کي دغه روایت راغلی دي.



## یواځیتوب اودهغه ضرورت

انسان په هر حال کي چې وي انسان دي ، څنګه چې هغه له خپلو همځولو سره له کښیناستوخونداخلي اوآرامي محسوسوي ،همهغه رنګه کله هغه په یواځیتوب کي دځان اوروح ارامي پیداکوي اوضروري ده چې هغه دیواځیتوب هم سم وخت سم ماحول اوسمه فضاولري څرنګه چې په شپه اوورځ کي دهغه لپاره دغه رنګه وختونه شته. په تیرشوي اية کي چې قرآن کریم دوختونوپه اړوندلارښوونه کړې ده چې خیال ساتل ئي ضروري دي.

موروي اوکه پلار ،زوی وي اوکه لور، ورور وی اوکه خور لنډه داچې هیڅ یوخپل هم دانه خوښوي چې څوک دي دهغه دتنهائي په وخت کي مداخله وکړي . هیڅ یونیک اخلاقه انسان دخپلودوستانو خپلوانواوخدمتګارانوترمخ دجماع کولو په څیرکاردترسره کولو جرأت نشي کولای ، اونه ورته خپل شرم اوحیاددې اجازه ورکوي ، خودویدیدلو پروخت په عام ډول خلک خپلي جامې باسي اوبیاویده کیږي په خاص ډول په هغوهیوادنواوسیموکي چې ګرمي زیاته وي دجامواېستل ضروري وي ، کله دخوب په وخت کي جامې دستر ترځایوپورته کیږي اوهغه ځایونه کېدای شي ښکاره شي چې په ویښه ئي هیڅ څوک دښکاره کولوجرئت نه شي کولای ، نوځکه په دغوخاصو وختوکي راتلونکي ته عقلاً هم پکاردي چې احتیاط وکړي ، دعاموتلونکواوراتلونکو، عاقل ، اوبالغ اوازادوحکم

مخکې تېرشوی دی چې کله کورته ورځې نواجازه دی واخلي اوبیادې ورشي.

په دغه کورکي که ښځې ژوندکوي اوکه نارینه ،ورننوتونکي هم که ښځه وي که نارینه ، دغه حکم دټولو لپاره عام دي اجازه اخستل واجب اوسلام ویل سنت ګڼل شوي دي .داجازې اخستلو هغه حکمونه چې تېر شول هغه دلري یاپه کورنۍ کي دنه داخلوخلکولپاره ؤ، مګر په دغه تیرشوی اية کي له یوبل څخه داجازې اخستلودحکمونوبیان شوی دی چې تړاووېې له هغوخپلوانواومحارموسره دی چې عادةً په یوکور کي اوسېږي اوهر وخت سره ګرزي راګرزي ، او یوبل ته بې له څه خنډه ورځې اوراځې اوپه ګډه سره دانساني ضرورتونودپوره کولو لپاره کله ضروري هم وي ، اوله کورڅخه بندکړي شوي نه وي اوله دوی څخه دښځوپرده هم دومره ژوره نه وي ددغه رنګه خلکولپاره کورته دننوتلو پروخت حکم صرف دادی چې کوروال دي

له خپل راتګ څخه خبروي یادي کم ترکمه دقدموڅخه دومره اواز (ډب ،ډب ) جوړوي چې کوروال وپوهیږي چې څوک راروان دی اویادي ټوخی وکړي-

داجازې اخستل ددغه رنګه خپلوانولپاره واجب نه ، بلکه مستحب دی چې پرینښودل ئې مکروه تنزیهي دی . خودغه رنګه په خپلوی اوګډ ژوندانه کي هم کله دکور یوغړی وغواړي چې په تنهایي کي پاته شي ، نودکوردبل غړی په بې اجازې ورتللوسره هغه ته تکلیف



رسیږي اوکله خودجنجال سبب هم ګرزي ، نوځکه غواړو ددغه بې ځایه مداخلې دمخنیوي لپاره دغه حکمونه بیان کړو.

**په کورکي دداخلي ارامي پرځای کول :**

هغه کوچنیان هلکان چې لاوخت دبلوغ ته نه وي رسیدلي اوعادةً ورڅخه پرده هم نه کول کیږي ، اوبې ضرورته په کورکي اخوادیخواچکر لګوي هغه که دخپل کوروي که دبل چادکور ، خپل اولاد وي اوکه خوریاوروروي اوآن له مینځې ، غلام ، مزدور یاخدمتګارڅخه هم خلک خاص احتیاط نه کوي ځکه چې وایي داهمیشه زموږ په خدمت کي وي ، دغه حرکتونه له کورنیواخلاقو سره په ټکر کي دي ، دهیڅ یوچازړه هم دانه غواړي چې هغه دي ویده وي اویوهلک یانجلۍ دي بې اجازې اوبې خبرتیاورننوزي ، ځکه ډیرځله په داسې یوحالت کي وي چې په ښکاره کولو ئي شرمیږي ، اوکه بالفرض په دغسې حالت کي هم نه وي نوکم ترکمه په دي سره خودهغه ارامي اویواځیتوب ته حتماً تاوان رسیږي ، نوله دې خاطره دغه ایتونه په خاص ډول داجازې اخستلوپه حکمونوکي راغلی دي چې په دغودرووختونوکي دي څوک چاته بغیر له اجازې نه ورځې ، دغه حکم دهغوکورلپاره دي چې سرای یاچهاردیوالي یوه وي خودرې یاڅلور کورنۍ پکي په جلاجلاکمروکي ژوند کوي دسرای دروازه هم یوه وي ، تاسوښه فکر وکړئ په اسلامي شریعت کي دمسلمانانودکورني ژوندبندوبست په څومره ښه اوپوره ډول شوی دی.هغه درې وختونه دادي:

(۱) دسهارترلمانځه مخکي

(۲) دغرمي دخوب پروخت

(۳) وروسته دماخوستن له لمانځه څخه چي خلک له کاروڅخه خلاص شي اوویده کیږي. عادةً په عام ډول دغه درې وختونه دارام کولواوتنهائي دي اوپه دغووختونوکي هر انسان بایدازاداوبې ویرې وي اوکله ، کله په دغووختوکي انسان له خپلې میرمنې سره بې له څه وېرې (چي څوک به دلته راځي ) په اختلاط بوخت وي ، نوله دې خاطره پاک خدای ﷻ دانسانې ضرورتونوته په کتوسره داسي وفرمایل : چي ای دایمان خاوندانو، تاسو ټول خپلوان ، آن هرېوه اوفکر لرونکي ، باشعوره نابالغ ماشومان اوخدمتګاران هم په دې پوه کړئ چي په دغووختونوکي چاته په پټه خوله یاپټ پټ مه ورځئ ، ماشومان تل هغه څه کوي په څه چي عادت شوي وي ، دوي اجازه پېژني هم نه چي دالاڅه شي دي ، نوځکه تاسو هغوته بایدوروښیاست چي په دغودرو وختوکي دنوروکورونه خودی دنوروخوپخپل کورکي هم هغوکمروته بې اجازې مه ورننوزئ چي هلته څوک اوسیږي.

## یوه پوښتنه اودهغي ځواب

دلته یوه پوښتنه پیداکیږي چي په دغه ایة کي چي بالغانوسړواوښځوته داجازې اخستلو حکم شوي دی داخوپرځای اوسم اومناسب هم ښکاري ، مګر نابالغ ماشومان چي دهیڅ یوشرعي حکم مکلف هم نه دی ، دهغوددغه حکم پابند ګرزول ظاهراً



فقهي له اصولوڅخه خلاف معلومیږي نوتردي له مخه چي اسودهغه په ځواب پوه شئ ، په دغوڅوخبروځان پوهول پکاردي چي اولاد له انسان سره دپاک خدای ﷻ یوامانت دی ، داولادپه رخه کي په موراوپلاباندی ډېري شرعي ، اخلاقي اوقانوني مواری شته ، داسلام غوښتنه داده چي له همدې لومړي،ورځوڅخه ه انسان کي ددغوزمواریواحساس اوشعور ژوندی وساتل شي ، وهغه بیاددغوزمواریوپرځان منلواوعملی کولوکوشش وکړي ، رنګه چي اسلام دموراوپلار دحقونویادونه داالله ﷻ حقونوترڅنګ په تاکیدسره کړي ده ، همهغه رنګه پرموراوپلار اندي هم شریعت څوحقونه لازم کړي دی چي له دغي واقعي څخه به علوم شي. یوچاخپل زوی روان کړ اوحضرت عمرفاروق رضی الله عالی عنه ته ئي وروست اوهغه رضی الله تعالی عنه ته ئي وویل چي ازمازوي زما نافرمانی کوي ، حضرت عمر رضی الله تعالی عنه لک ته وویل چي ته له خدایه ﷻ څخه نه ډاریږي چي دخپل پلار افرماني کوي ؟ اوله دي څخه وروسته ئي دپلارحقونه پوره رته بیان کړل ، هلک وویل : ای امیرالمؤمنینه ! ایادزوی هم رپلارباندي څه حق شته کنه ؟ حضرت عمر رضی الله تعالی عنه رته وفرمایل : چي هو ! ولي نشته ؟ پرپلارباندي لومړي حق دادي چي ځان ته یوه داسي میرمن خوښه کړي چي دصورت اوسیرت له ښځي ډېره ښه وي ، اوډېرښه اخلاق ولري ، له یوې داسي ښځې سره ي واده نه کوي چي ښه والی اوبدوالی ئي ورته معلوم نه وي ،

ترخوچې اولادونه ئي دخپلې مور په وجه له ذلت اورسوائي سره لا
اوګريوان نه شي ، بياچې کله الله ﷻ اولادورکړي نوپرهغه باند
بايدسم نوم کښيږدي ، کله چې هغه دومره شوچې علم زده کړ
نودالله ﷻ دکتاب (قرآن کريم ) تعليم بايدورته ورکړي ، هلک
ددغوخبروتراوريدلووروسته وويل: زه په خداى ﷻ قسم کوم چې
زماپلارزمادمورسم انتخاب کړي دي ، نه ئي پرماسم نوم ايښى دى
اونه ئى راته دقرآن کريم تعليم راکړي دى ، نوخضرت عمر رضى ال
تعالى عنه دهغه پلارته مخاطب شو اووئي فرمايل : چې ته وا
زمازوى زمانافرمانى کوي ، مخته تردې چې هغه ستانافرمانى وکړ
تادهغه حق ضائع کړى دى ، ځه له مخه مي تيرشه !.
له حديثونوڅخه معلوميږي چې له ميرمني سره دتړاوپروخت ب
انسان کي صرف دنفسى خواهش دپوره والي جذبه بايد نه وى ځک
چې دايونفسياتي حقيقت دى چې که له ميرمني سره دنژديکت ب
وخت په انسان کي هر ډول جذبه وي نوپه اولاد باندى حتماً دهغې
اثرلويږي . لکه دنفس داراملوتر څنګ دنيک اوصالح اولا
غوښتنه هم پکار ده اوددې لپاره په زړه کي بايديوه آرزواوتلوسه هـ
بايدموجوده وي ، دجنسي جذبودسختى پروخت دپاک خداى ﷻ
يادول اوهغه ته دعاکول هيڅ سخت کارنه دى ددې تړاوو له نيت
اوارادې سره دى ،مسلمان هغه دى چې په دغه وخت کي هم خپل
خداى ﷻ له ياده ونه باسي ، اوپه شروع کي لادخپل ځان اوخپل
اولادلپاره دعاء وکړي ، نوپه هغه بياشيطان هم هغومزه نشي برلاسى



کيداى چې هغه بالکل له سمي لاري څخه واوړي بلکه پخپله هغه نه
اودهغه اولادته دپاک خداى ﷻ له لوري حفاظت حاصليږي دبخاري
شريفي په يوحديث کي راغلي دي : (لَمْ يَضُرُّهُ الشَّيْطَانُ وَلَمْ يُسَلَّطهُ
)يعني يوڅوک چې له اول نه په دعاکولوشروع کوي ، دهغه اولادته
به شيطان ضررنه رسوي ، اوپرهغه به دشيطان تسلط نوي هغه ماشوم
به په داسي حال کي دنياته راځي چې دصلاح اوتقوى ملغلري به ئي له
ځان سره راوړي وي ، دغه رنګه داولاد دروزني په اړه هم حديثونه
راغلي دي ، امام ترمذي رحمة الله عليه له حضرت ايوب بن موسى
رضى الله تعالى عنه څخه مرسلاً روايت کوي چې: نبى کريم صلى
الله تعالى عليه واله وسلم وفرمايل : چې دپلارله طرفه ترټولوښه
عطيه نيک اخلاق دي ، دغه رنګه دترمذي شريفي په بل حديث کي
راغلي دي چې که يوانسان خپل زوى ته ادب ورزده کوي هغه دده
لپاره په څوڅوچنده ترډې بهتره دى چې يوصاع(۲۳۴ تولى ) خيرات
کړي. له دغوحديثونواوواقعوڅخه معلوميږي چې اسلامي شريعت
پرموراوپلارباندى دماشومانودتعليم په برخه کي ډيرزوراچولي دي
، اسلام غواړي چې په انسان کي له هغه اولي ورځې دديني اودنيوي
مسئوليتونو شعور اوفکر وروزل شي اوموراوپلار
دخپلوبچيانوروزنه داسلام په رڼاکي ترسره کړي. دپورتني پوښتنې
ځواب دادى چې په دغه اية مبارک کي اصل خطاب
بالغانوسړواوښځوته دى لکه چې په قرآن کريم کي ډيرځايه خطاب
سړو(نارينه ؤ) ته شوي وي بغيرله ځوخاصومسئلو،خوښځې هم

ضمناً په هغوکي ورداخلي وي ، دلته خطاب بالغانوته شويدي چې هغوی دی دخپلو وړوماشومانوتعليم اوتربيې ته ډېره توجه وکړي ، اوورته دوي وايې چې په دغودرووختوکي دبل چاکوټې ته بې اجازې مه ورننوزئ ، په واروارله واقعواوتجربوڅخه ثابته شوې ده چې دماشومانودتعليم اوتربيې (ښووني اوروزنې) بهترين وخت اوزمانه دهغه کم عمري اولاشعوری شپې اوورځې دی په کچه عمرکي چې کومې خبري دماشومانوپه ذهن کي قرار نيسي هغه دشعوراوعقل له پخيدلو ورستوهيڅکله هم نشي هيريدلای.

### دجناح دلفظ څېړنه

په ذکرشوي اية شريف کي دغه الفاظ راغلي دي ، چې له دغودرووختوڅخه بغير په نوروختوکي که تاسو بغير له اجازې وګرزئ راوګرزئ نوپه تاسو باندي (جُنَاحٌ ) نشته . که څه هم دلته دجناح لفظ راغلی دی چې عموماً دګناه په معنی استعماليږي ، مګر کله بيامطلقاً دحرج (تکليف ) اومذائقې په معنی راځي ، دلته د(لاجناح ) دلفظ معنی داده چې تاسولره څه مذائقه اوتنګي نشته په دې سره دمکلف اوګناهګارکېدلوشبهه هم له مينځه ځي.

### دماشومانودداروشرعي اړخ

پردغودرووختوسربيره په کوم بل وخت کي نابالغ ماشومان اودکورخدمتګاران دسړي اوښځې کوټې (کمرې ) اويادهغوديواځيوالي ځايوته ورتلای شي ، که په دغه صورة کي تاسو په کوم نامناسب حالت کي واست ، شرمګاه موبربنډؤ



اوياپخپل منځ کي په جنسي کاروبارلګياواست اوهغه درباندی بې اجازې راغلی ، نوتاسو حق نه لرئ چې هغه ووهئ اوياېې سزاورکړئ ځکه چې داستاسوخپله ناپوهي اوبداخلاقي ده چې دعام کاروبار، ګرزيدوراګرزيدوپروخت موبه يوداسی کارلاس پورې کړي دی . داچې دغه وختونه عموماً ازادوي نوله دې خاطره په هغوکي دشرم دځايونو پټول اودهغوپوره تحفظ کول ستاسو (مشرانو،مور،پلار ) ديني اواخلاقي فريضه ده . څوکه دوي په دغودروذکرشوو وختوکي ستاسوبې اجازې سره له دې چې تاسودوی په دې پوه کړی هم وي چې دبل چاداستوګنې کمروته په دغودرووختوکي مه ورځئ بياهم درشي نوبيادوي خطاء کاران دي ، اوسزاورکولای شئ ؛ اوکه تاسو خپلو ماشومانواوخدمتګارانوته دغه نيک خوی ښوولي نه وي نوبياتاسوګنهګارايااست.

حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهمافرمايي: چې ماخپله مينځه هم په دې پابنده کړي ده چې په دغودرووختوکي دې ماته نه راځي.

### د ((عورات)) دلفظ څېړنه :

په اية شريف کې فرمايل شوي :( ثَلاثُ عَوْرَاتٍ لَکُمْ) درې وختونه ستاسولپاره عورت دي. په پښتوژبه کي خودعورت دلفظ استعمال نشته مګر په عربي ژبه کي يې معنی دپردې اوخطرې دځای دی ، اودغه لفظ دهغه ځای لپاره هم استعماليږي چې لوڅول ئې دانسان لپاره دشرم باعث وي ، (له نامه لاندې دزنګنوترسترګوپورې ) مطلب دادی چې په دغودروحالاتوکي خلک تنهاوي اوياپه عام ډول له

خپلو میرمنوسره په داسي څه لګیاوي چي دکوردماشومانواوخدمتګارانو هغوی ته په ناځاپي ډول ورتلل نامناسب اونالائق ګڼل کیږي ، لهذادخپلواولادونوروزنه همداسي وکړئ چې په دغودرووختونوکي چې کله تاسو دچادخلوت ځایونوته ورځئ نولومړی له هغوڅخه اجازه اخلئ اوهمداسي په پټه خوله اوناځاپه مه ورننوزئ کیداى شي چې په کوټه (کمره ) یاکورکي څوک وی اوورسره هیڅ دچادراتلو فکر نشته دپردې په حالت کي نه وي ، چې په هغه صورة کي به بیاستاسودغه ورننوتل هم ستاسو لپاره اوهم ددوي لپاره باعث دخجالت وګرزي په هغوشیانوکي چي خلکوته ډیرډیرپیښیږي ، اوپه هغوکي چې ځان ساتل ورڅخه ګران وي شریعت داسانتیالپاره ، لاره پیداکوي دمثال په ډول پشوډیره کوروته ورځي ، اوځیني خلک یي ساتي هم اوکله کله خودخوراک اوڅښاک په شیانوکي خوله هم اچوي ، نوکه شریعت هغه شیان چې هغې پکي خوله اچولی ده حرام یامرداربللي وای نوله دې څخه به یقیناً خلک ډیرضررمندشوي وای ، له همدې خاطره شریعت خوداسانتیاصورتونه خلکو ته وړاندي کړي دي ، چې له هغوڅخه دغه دماشومانواوخدمتګارانومسئله هم ده ، چې که دوی دهروار ورتلولپاره اجازه غواړي نودابه دهغولپاره ډیرګران اوتکلیف جن کاروي.

**یادونه** : په دې بایدځان سِره پوه کړو چې داسانتیاؤ ددغوصورتونودراایستلو کارصرف په مجتهدینوعلماؤ پوري



خاص دي ، هر چاته په دغه باب کي داجتهاداجازه نشته ، دمثال په ډول یوڅوک به دادلیل وړاندي کوي چې سپی هم خلک ساتي ، اوهغه هم په کورکي اوسیږي اودخوراک په لوښوکي خوله اچوي ، نودهغه پسخورده باید ممنوع نه وای ، نودغه رنګه قیاس به قطعاً بې ځایه اوغلط وي ځکه چې شریعت چاته دسپي دساتلو اجازه نه ده ورکړې.

## دغودرو وختونه تخصیص نه دي ورکړل شوی :

په دې خبره فقهاؤ صراحة کړي دي چې دغودوروختونه تخصیص نه دی ورکړ شوي ، کله چې قرآن کریم نازیلیدی نوعام عادة په دغودرووختوکي دارام کولو ؤ ، نوکه په نوروهیوادوکي دارام کولو وختونه له د ې څخه بدل ؤ، نوهلته بیاحکم دهغو درووختونولپاره دي ، اوله هغه وخت سره سم به ماشومانوته روزنه ورکوي اودلته دخوب اوتخلیي وختونه نه دي ټاکل شوي بلکه په ایت شریف کي دعام عادة لحاظ اورعایت ساتل شوي دی اوددغه عادة ګټه هغوهیوادوته رسیږي کوم چې (۲۴) ساعته یاتردي لږ څه زیاته ورځ یاشپه ولري ؛ څوپه نوروهیوادولکه (ګرین لینډ ) green land اوایسلنډ( ice land )چې ورځ یې هم درې میاشتي وي اوشپه ئې هم درې میاشتي وي دهرڅه لپاره ټاکلي وختونه وي اودلمانځه اودروژې دوخت په معلومولوکي هم له ساعتونوڅخه کار اخستل کېږي ، نوبناءً هلته چې له حال سره سم دخوب کوم وختونه ټاکل شوي دی ،په هغه حساب دي ماشومانو اوخدمتګارانوته روزنه

ورکړله شي ،چې له اسلامي قانون سره سم دي په معلوموو ختونوکي په ټاکل شوي ډول دننوتلو لپاره اجازه واخلي په ذکر شوؤ مسئلوکي دکوروالولپاره خاص رعایت په نظرکي نیول شوی دی ، دمثال په ډول یوچاپه کمره کي اچول شوي پرده پورته کړي ده اوپخپله ترهغې له مخه ناست دی یاپه خلاص دالان کي بغیر له حجابه ناست یاولاړ دی ، نوکوروالوته دنورزیات اجازي اخستلو ضرورت نشته ، خوکه هغه پرده اچولې وه اوپایي دروازه بنده کړې وه نوبیادکور دخلکولپاره هم ضروري ده چي دورتلو پروخت اجازه وغواړي ، اوهغه چاته چي دغه پرده جوړونکی په خاص ډول په هروخت کي دتلو راتلو اجازه ورکړي وي چې ته هر وخت بې له اجازې اوخبرتیادلته ګرزه اوراګرزه نوهغه له دې څخه وتلی دی.

تفسیرابن کثیردحضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهماروایت دابن ابی حاتم په سندنقل کړي دی چي حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله تعالی عنهماوفرمایل : چې درې داسي ایتونه دي چې خلکووربادی عمل کول پریښي دي ، یوله هغوڅخه داجازې اخستلوایت دي ، دوهم د(إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ ) اية دي چي پکي فرمایل شوي دي چې ترټولوعزتمن شخص هغه دي کوم چې ترټولو پرهیزګاروي مګر نن سباخلک هغه څوک عزتمن بولي چې ورسره څه زر،روپۍ یادنیاوي که څه هم هغه له حقیقي صفتوڅخه په پوره ډول بې برخي وي ، دریيم د(وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبَى الایة ایت دي چې پکي دمیراث ویشلوپروخت پکي وارثانوته



لارښوونه شوې ده چي که دمیراث دمال دتقسیم پروخت داسې یوڅوک هم له خپلوانوڅخه موجودوي چې دمیراث دقانون له مخې هغه په میراث کي هیڅ حق نه لري هغه ته هم څه ورکړئ ترڅوهغه زړه ماتي نه شي۔

**دکتاب خلاصه:**

(۱) که تاسویوچاته ورځئ نودهغه کمرې یاکورته بې اجازې(بې کړپ وکړوپه ) مه ننوزئ بلکه په تاسو لازمه ده چې اجازه واخلئ.

(۲) که تاسو دهغه دروازه ټکوئ( ددروازې ځنځر شرنګوئ ) نوداکار په اسلامي طریقه وکړئ.

(۳) داجازې اسلامي طریقه داده چې له دروازې سره نژدې په څنګ کي ودریږي اووائي چې اسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته ایااجازه ده چي درشم ؟.

(۴) که جواب درنه کړل شو نوپه دوهم اودریيم وارهم په همدغه ډول سلام ویل تکرارکړئ ، بیاکه تاسو پوهیدلاست چي داوخت دکورخاوندیاهغه څوک چې تاسوئي غواړئ عذر لري اودملاقات امکان نشته نوبېرته واپس لاړشئ ،اوداهیڅکله هم بده خبره مه بولئ

(۵)داجازې اخستلو پروخت تاسوته پکارده چې ددروازې یوطرفته ودریږئ ، اوداسي ځای بایدونه دریږئ چې له هغه ځایه دکور داخل نه ښکاریږي ،خوکه هغه څوک چې تاسو ورڅخه اجازه اخلئ هغه مخامخ ؤ نوتاسو ورباندي سلام ووایئ اودورتلو اجازه ورڅخه واخلئ.

(۶) د کورداخلي برخې ته پټ پټ ورکتل عیب دي نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ډیرپه کلکه خپل امت له دي څخه منع کړي دي ،

(۷) د کورخاوند په دي مه مجبورکوئ چې خامخا بایدراووزي.

(۸) خپل کورته هم په سلام ویلو اوغږ کولوسره ورځئ کله چې کورته ورسیږئ نود کورپه خلکو سلام اچوئ .

(۹) که د کورله داخل څخه څوک له تاسو پوښتنه وکړي چې څوک یاست ؟ نوپه ځواب کي خپل ټول نوم ورته وښیاست ، داسی مه ورته وایاست چې ((زه یم )) ځکه چې په کورکي دننه خلک څه پوهیږي چې ((زه )) څوک دي ((زه )) خونوم نه بلکه ضمیردي.

(۱۰) نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم یوصحابي رضی الله تعالی عنه ته هدایت ورکړچي که ته یوچاته ورتلي نوځوورځي په منځ کي ورکوه ځکه چې په دې سره محبت زیاتیږي.

(۱۱) چاته په داسي وخت کي مه ورځه چې دهغه دډوډۍ یاناشتې کولو وخت وي ، اوکه ضرورت ؤ نوبیاپخپل کوریاځای کي ډوډۍ خورئ اوبیاهلته ورځئ که تاسو پخپل ځای ډوډۍ خوړلوته پاته نشواست نوبیاهلته درواغ مه وایاست چې ومي خوړله نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم فرمایي : درواغ اولوږه مه سره یوځای کوئ ، دنه خوړلولپاره کوم بل عذر وړاندي کړئ.

(۱۲) که تاسوپه بل ښارکي چاته ورځئ نوترورتلوله مخه ئي خبرکړئ ، نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم په شپه کي چاته



دورتلو سخته منعه کړې ده په شپه کي بې خبرتیاخپل کورته دورتلو اجازه هم نشته.

(۱۳)کله چې تاسوکورته ننوزئ نوسلام اچوئ ، دمصافحي اومعانقي (حال پوښتلو) لپاره ستاسو مخته راتلل دکوردخاوندکاردی که هغه مومخته رانغلی اویاپه کوم کارلګیاؤنوتاسو هغه له کاره مه باسئ.

(۱۴)که ددرس یانصیحت محفل ته ورغلاست اویامسجدته ورغلاست چې هلته خلک په نفلو، وظیفو،تسبیحاتواوداسي نورڅه لګیاوو، نوتاسو ورته سلام مه اچوئ.

(۱۵)کله چې دننه داخل شئ نوپرلوړځای مه کښینئ په ساده اوعام ځای کښینئ اودکوردخاونددکښیناستلوپرځای هم مه کښینئ ، دابیادکوردخاوندکاردی چې تاسوته خپل ځای درخلاصوي اوکه کوم بل مناسب ځای درته ښیئ.

(۱۶)که تاته دخوراک لپاره څه راوړل شي نوترټولوړومبی مه ورباندي ګډیږه.

(۱۷) په قرآن کریم کي سړواوښځو دواړوته لارښوونه شوي ده چې خپل نظرونه ټیټ ساتئ نوتاسو هم په هر ځای کي چې یاست پردغه حکم عمل کوئ اوهري خواته نظر مه اچوئ.

(۱۸) نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم په هرځای کي له ډیرغوراوسنجیده ګي څخه دکاراخیستلو سپارښتنه (هدایت ) کړي دی کله چې له چاسره مخ کیږئ نوپه خپلو خبروکي نرمي کوئ ، اوله

پوره سنجش څخه کاروا خلئ ، بې اجازې هیڅ یوشي مه څېړئ اومه
ئي اوږدوئ ، چاته طمعه اوهیله مه کوئ.

(۱۹) ډیروخت مه کښینئ اواوږده ،اوږده بحثونه هم مه کوئ ، کله
چې موکارخلاص شو سمدستي اجازه اخلئ ، خوکه دکورخاوند ډیر
ټینګ شو ، نوبیاچې له تاسوسره څومره وخت وي هغومره ورسره
پاتي شئ.

(۲۰) په کارده چې ماشومانوته په اسلامي طریقه روزنه ورکړله شي
،ترڅوله اولې ورځې له نیکواوښوکارونوسره عادت ونیسي.

(۲۱) کله چې تاسویوچاته ورشئ نوپه سلام ویلو سره یاوروموخامخ
کیدلو سره دوی له خپل راتګ څخه خبرکړئ ، اوبغیر ددوي له
خبرتیاداسي ځای مه کښینئ چې دوی درڅخه خبرنه وي ،ځکه چې
شایددوي پخپلو منځوکي داسي خبري کوي چې نه غواړي له
هغوڅخه تاسي خبرشئ ، اوبغیردهغوله خوښي ددوی په
پټوخبروځان خبرول رواکارنه دی ، بلکه که کله تاسو داسی پوه شئ
چې دغه خلک له ماڅخه نه دي خبرچې زه دلته یم نوځکه دغه رنګه
خبري کوي نوډېرژرله دوی څخه لیري شئ ، اویادوی پرتاداخیال
کړي ؤ چې ته ویده ئي ، نوځکه دوي پټې خبري کوي ، نوته ورته
ډیرژرخپل ویښوالی ظاهرکړه.

(۲۲) که کله تاسوچاته دڅه ویلو یالیدوکتولپاره ورشئ نوهغه له څه
وجې څه فرصت ونه لري یعنې یادقرآن تلاوة کوي ، یاوظیفه کوي ،
یاپه خپله خلوتګاه کي دڅه په لیکلو لګیاوي ، یائي دویده



کیدو لپاره تیاري نیولي وي ، اویاله نښونښانوڅخه معلومیږي چې
که هغه ته ورشئ غالباً دادهغه دپریشانۍ سبب ګرزي ، یائي په
کارکي خنډاوخنډجوړیږي ، نوپه دغسې حالت کي مه هغه ته سلام
اچوئ مه خبري ورسره کوئ ، بلکه یاورڅخه بیرته لاړشئ اوکه
موکارډیرضروري (عاجل ) ؤ نوترهرڅه له مخه ورته وواياست چې زه
خویوه ډیره ضروري خبره لرم ، اویاترهغه وخته ورته انتظاروکړئ
چې هغه فرصت پیداکوي ، .

(۲۳) که تاسو دچاپه انتظارکښینئ ، نوپه داسي ډول اوداسي وخت
کي مه کښینئ چې هغه ته دامعلومه شي چې ته زماپه انتظارکي
ناست یې ، بلکه له هغه څخه لیري اوپټ کښینه.

(۲۴) څوک چې میلمستیاته روان وي ،یائي غوښتی وي له هغه سره
ترهغه ځایه مه ځه ، ځکه چې دکورخاوندشرمیږي چې تاپه
میلمستیاکي دګډون لپاره نه وګرز وي ، خوپه زړه کي دننه یې داسي
نه وي خوښه.

(۲۵) له داسي یوچاسره چې پخوامو پیژانده خوډیره زمانه موورسره
نه وي لیدلي ، یاداسي چاسره چې په لومړي واریې شناخته کوئ
دلیدوپروخت ترسلام وروسته سمدستي خپل نوم وروښایئ ، اوځان
وروپیژنئ ، ځکه چې کله وخت تاسو پوره یقین لرئ چې هغه
تاپیژني خومقابل جانب موپه پریشاني اوتشویش کي وي ، اوپه دي
هم شرمیږي چې دنامه پوښتنه درڅخه کوي.

(۲۶) کله چې تاسو څوک وينئ چې ډېر تيز روان دي ،نو په لاره کې
ورته دمصافحې (ستړې مشې ) لپاره مه درېږئ ، شايد دهغه
مخکې ، ضروري او سخت کارپروت وي ، اودغه رنګه ورسره
ولاړه خبرې هم مه کوئ.

(۲۷) کله يو څوک داسې کوي چې مجلس ته ورشي نوله هرهر سړي
سره جلا جلا په لاس ستړې مشې کوي حال داچې دمجلس خلک ټول
هم نه پيژني ، چې په دې سره ډېر وخت لګيږي ، ترڅو چې هغه له د
کاره خلاصيږي ترهغه وخته پورې ټول مجلس مشغول وي . مناسب
داده چې له هغه چاسره ستړې مشه وکړي چې ورسره کارئي وي ،
خوکه ټول شناخته ګان وي بيا پکې څه منعه نشته.

(۲۸) له چاسره چې ژور شناخت نه لرئ اودکورپه چاروکې ډغيدل
ورته تکليف کيږي ،له هغوڅخه دکوروالو پوښتنه مه کوئ
اودهغوحال مه ترې اخلئ.

(۲۹) کله چې تاسو دشپې له خوانا وخته کورته راځئ ، نو دهغو خلکو
ډېرخيال ساتئ چې ويده دي ،ځکه چې دمشکوة شريف له حديث
څخه ثابته شوې ده چې کله به له نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله
وسلم سره ميلمه ؤ او نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم به
ماخوستن ناوخته کورته راتلی نو په دغه حالت کې به دميلمانه وين
پاته کيدو او ويده کيدلو دواړه احتماله ؤ ، نوځکه به نبی کريم صلی
الله تعالی عليه واله وسلم په دومره سوکه اوازسلام وايو چې که به
ميلمه ويښ ؤ نو به ئې اوريدلای شوای ، او که به ويده ؤ نو په دې سر



به نه ويښيدی ،دبرات په شپه نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله
وسلم په دې خيال چې حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها ويده ده له
خپل بسترڅخه پورته شو ، او په دې وجه چې عائشه رضی الله تعالی
عنها په تکليف نشي سوکه يې خپلې مبارکې چوټې په پښوکړې
اوسوکه يې ځنځير خلاص کړاوبهرهديرې ته ولاړی اوسوکه يې هغه
ځنځير بيرته بندکړ ، هغه مبارک څومره ډېرخيال ساتی چې هيڅ
داسې اواز پيدانشي چې له امله ئې ويده خلک راپوره ته شي
او وويږي.

(۳۰) دداسې دووسړوپه منځ کې کښيناستل چې قصداً پورته
ناست وي ، بغيرله اجازې روانه دي.

(۳۱) ددرس يانصيحت په مجلس (غونډه ) کې چې هر ځای ،ځای
درته پيداکيږي هم هلته کښينه دمخته تللوپه خاطر خلک
اخوادېخوامه پورې وهه ځکه چې له حضرت جابر رضی الله تعالی
عنه څخه روايت دي چې : موږبه کله نبی کريم صلی الله تعالی عليه
واله وسلم ته ورتللونوڅوک چې به کوم ځای ته ور ورسيدی نوهلته
به کښيناستی.

(۳۲) کله چې دناروغ پوښتنې ته ورشې نوترډېره مه ورسره کښينئ
ځکه چې کله وخت دخلکو کښيناستل دناروغ په بل اړخ اوښتلو،
پښې غزولوخبروکولو کې تکليف وي خودادهغه چالپاره نه دی چې
ياخودناروغ خدمت کوي اويايې ناورغ په کښيناستلو خوشحاله
کيږي.

(۳۳) دناروغ اودهغه دخپلوانوپه وړاندي داسي خبري مه کوئ چ
له ژونده نااميدي ورڅخه معلوميږي ، ځکه چې په دي سره ناحق
زړونه ماتيږي ، بلکه سنت طريقه داده چې دتسلي اوزړه اراموو
خبري کوئ ، چې انشاء الله داهر څه تکليف به الله پاک ختم کړي.

(۳۴)څوک چې دسفرپه تياري مشغول وي له هغه سره بې وخته م
يوځاي کيږئ ، اوکه ضرورت وي نوبيادومره اوږدي خبري ورسره م
کوئ چې هغه ورڅخه تنګ شي يادهغوپه سبب دهغه په کارکي ځ
ځنډواقع شي ، خوڅوک چې له مسافرسره مرسته کوي ياورڅخ
اجازه اخلي هغه ورڅخه مستثنی دي.

(۳۵) که تاسو له چاسره کښيناستلاست نودومره به ورته نژدي ن
کښينئ چې دهغه زړه درڅخه ازارشي ، اونه به ورڅخه دومره ليري
کښينئ چې په خبرواونورڅه کي تکليف جوړ شي کله چې ته مشغول
انسان ته نژدي کښينې نوځير، ځيرمه ورته ګوره ، ځکه چې په دې
سره دهغه زړه تنګيږي.

(۳۶) کله چې تاسو چيري په ميلمستياولاړ شئ نوهغه ته دڅ
فرمايش مه ورکوئ ځکه چې کله هغه شي موجودوي اوکله نه وي
موجودنوکه موجودنه وي نوبياپه دي خبره دکوروال خجله کيږي.

(۳۷) کله چې تاته يوڅوک دڅه کارووائي نوحتماً هو،هو يانه ،نه
ورته لره ترڅودهغه زړه ډاډه شي اوداسی نه شي چې دويونکي خيال
داشي چې تاهرڅه واوريدل اوتاهيڅ نه وي اوريدلی اويادهغه خيال



داشي چې ته داکارکوي خوستايي کول منظور نه وي ، يعنی
دکولواراده يې نه لري.

(۳۸) کله چې څوک تاسوته غږيږي نوورته پوره متوجه اوسئ ځکه
چې ستاسو له نه توجه څخه دهغه زړه دردمند کيږي ، په خاص ډول په
هغوځايوکي چې دهغه ويناستاد ګټې لپاره وي ، اوياستاپوښتنې ته
ځواب وايي.

(۳۹) که تاسو له يوچاڅخه دخپل دينې يادنيوي ضرورت په باره کي
پوښتنه وکړه اوبياهغه له تاڅخه دڅه شي تحقيق وغوښتی ، نوکوږ
ووږ اوناڅرګنده ځواب مه ورکوه ، ورته خپل غرض اومطلب صاف
صاف بيان کړه په تکليف سره دکناياتواواشاراتو بيانول دادب
خلاف اوسم کار نه ده.

(۴۰) پکارده چې هميشه صافی اوبی کمبوده ، بې زيادته خبري
وکړئ ، ستاسو وينابايد دخلګودغوږونواوفکرونولپاره سخته
اوسنګينه نوي.

(۴۱) کله داسي خلک وي چې يوڅه خبري په ډيرتيز اولوړږغ کوي ،
اوڅه خبري بيادومره سو که کوي چې ياخوسړی تولي نه شي
اوريدلای اويائي بالکل نه شي اوريدلای ، په دغودواړوصورتوکي
ددی امکان شته چې اوريدونکي په غلط ډول پوه شي ، يادخبري په
کيفيت ، سراوپای بالکل پوه نشي ، نوپکاردي چې دخبروهره برخه
په ارام اوصاف اوازوويله شي.

(۴۲) پکارده چې دبل چاخبري په پوره غوراوفکر سره واوريدلي شي ، اوکه پکي څه شک پاته شي نوسم دستي ئي بايدله ويونکي څخه وپوښتي ، بغيرله دي چې ښه پوه شئ عمل مه کوئ ، ځکه چې کله په غلط فهمي عمل کولو څخه عمل کونکي ته ضررر رسيږي ، .

(۴۳) که تاسو يوه خبره له چاڅخه پټه کوئ اوهغه هم دالته وي ، نوهغه ته په سترګويالاس دتلو اشاره مه کوئ ،ځکه چې هغه ته ناحقه شک پيداکيږي ، اوداهم هغه وخت چې ددغې خبرې کول په شريعت کي برابر وي ، اوکه برابر نه وي نوبيادداغه رنګه خبروکول لويه ګناه ده.

(۴۴) که په يوه مجلس کي خاصه وينار وانه وي ، نونوي راتلو نکي شخص ته پکارده چې له راتلو سره سم سلام واچوي اوخپل ځان ته په توجه سره دهغوی دکارمزاحم نه شي.

(۴۵) که تاسو چاته دکوم ضرورت دحل کولو لپاره وزځئ ، نوهرکله چې موموقع پيداکړه نوفوراً خپل عرض وړاندي کوئ ، اوانتظارمه کوئ ، کله وخت هغه دافکرکوي چې داحوال پرسې (پوښتنې ) لپاره راغلى دى ، نه دکوم کارلپاره ، کله چې دکورخاوندبې فکره شي ياپه بل څه لګياشي ، اوبياتاسو ورته واياست چې زه خودفلاني کار لپاره راغلم ، نودابياددوي لپاره ډيرتکليف کيږي ، اوکله چې خبري ورسره کوئ نومخامخ ورته کښينئ اوخبرى کوئ.

(۴۶)کله چې تاسو چاته داسى خبري کوئ چې دهغې ذکرمخته هم شوي وي ، نوددوهم وارپيش کولو پروخت هم پوره خبره



بايدوکړئ له نبنانواوداسي نورڅه څخه کارمه اخلئ ځکه چې کيداى شي له مخاطب څخه پخواني خبره هيره شوي وي ، ياله ديواره غلط پوه شي اويادنه پوهيدلو په وجه له پريشانۍ اوتشويش سره مخ شي

(۴۷) ځينې خلک داسي کوي چې دمخاطب له شاناست وي اوبياهغه ته ددي لپاره نعرې وهې چې هغه راته وګوري ، اوله ماسره خبري وکړي ؛ له دغه کار څخه انسان ډيرپه تکليف کيږي ، تردې ، دابهتره ده چې ورشي اومخاطب ته مخامخ کښيني اوخپل عرض ورته وړاندي کړي خوکه مخاطب مشغول وي نوبيابايدبغيرله ضرورته په مخامخ ډول هم ورسره خبري ونه کړلي شي اوښه لاره داده چې دهغه ترخلاصون پوري داسي ځاى انتظاروشي چې هغه بالکل درباندي خبرنه شي ، ځکه له دې څخه دکور خاوندته تکليف رسيږي.

(۴۸) دبل چاخط چې له تاسره تعلق نه لري (يعنى تاته نه وي ) مه ګوره ،کله کله خلک هغه وخت چې څوک چاته خط ليکي دخط ليکونکي ترڅنګ کښيني اودسترګوترچولو پټ پټ ورته ګوري ، نودپردي (امانت ) خط کتل په حاضرانه اوغائبانه ډول دواړو حرام دي.

(۴۹) دغه رنګه که دچاپه مخکي کاغذونه يانورڅه ايښي وي ، نوهغه مه سره اړوئ اومه ئي ګورئ ، ځکه شايدهغه داونه غواړي چې تاسو يې کاغذ ونه وګورئ که څه هم پټ ئي نه وي درڅخه ايښي.

(۵۰) دهغواسبابو اوذرايعو له منځه وړل ډيرضروري دي - چې ورڅخه خلکوته ضرراوتکليف رسيږي ، شريعت دغه کارته

دحد درجه ورکړي ده ، چې دهيځ يو چاکوم حرکت ياحالت به دبل چالپاره دډير کم تکليف ، ضرر ، سختي ، تنګي ، سنګيني ، انقباض ، کراهيت ، تشويش ، پريشاني ، ويري اوخجالت سبب نه ګرزي ، او نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم په دې اړوند صرف په قول اوعمل بسوالی نه دی کړی ، بلکه ځيني خدمتګاران ئي يي ددوي دبي پروايي پروخت دملاقات پردغوادابو مجبوره کړی هم دي.

دشريعت مقصد دادی چې له يوانسان څخه بايدبل انسان ته هيڅ ډول ضرراوتکليف ونه رسيږي هغه که له مالي لارې وي، که له ځاني لارې څخه وي اوکه دادابو اوتعظيم په لحاظ وي.

## دسپيڅلې ټولني تعليم

په تيرودرووختونو کي داجازي اخستلو پابندي دهرچالپاره لکه: سړو،ښځو،هلکانو، نجونو، غلامانو، منيځو، اوداسي نورولپاره عامه ده اودعبدالله بن عباس رضی الله تعالی عنهمااوډيرو نوروقول هم دغه دی ، ځکه چې په خاصو وختوکي دهرچاداخيليدل تکليف جوړونکی اودنه زغملو باعث ګرزي که څه هم هغه کوچنی هلک، يانجلۍ وي ، ددې دوجوب علت دادی چې په دغودرووختونوکي انسان غواړي چې يواځې شي اوهر څه چې غواړي په ازاداوارام زړه يي ترسره کړي ، اوډيروختونه دچادورتلو دنه ډار په جه خلک په خپلو شخصي ځايوياکوټوکي له خپلو ميرمنوسره مشغول وی يابل کوم خاص کارکوي اويايي دبې پروايي ياعذر په وجه جامي ايستلي وی ، که خلک احتياط وکړي اوداعادت جوړ کړي چې په



دغودرووختوکي هم دشرمګاه له لوځولو ځان وساتي اوتر هغه پوري له ميرمنوسره هم نه يوځای کيږي ترڅودخلکودورتلو ويره بالکل ختمه شي ، نوپه دغه صورة کي بيادغه حکم نه دی چې خپل اولادونه اوخدمتګاران په دغووختونو کي داجازي اخستلو پابندکړي اونه پردوي ددغه حکم وجوب ثابتيدلای شي مګرداپه هر حال يوښه اومستحب کارخامخادی ، خوکه په واړه نظر ورته وګورونوعموماً پري عمل کول پريښودل شوی دی ، حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهماخوپه درو اياتونو دعمل نه کولو افسوس په خپله دوره يازمانه کي کړي ؤ ، مګرکه دغه زموږ اوستاسو زماني ته وکتل شي ، نوتاسو ته به معلومه شي چې دغه زمانه څومره له فتنوډکه ده ، حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهماخولادخيروالقرون (ترټولو ښه زمانه ) کي افسوس کاوو چې پکي دخلکو دژوندانه دپيل اوپای مقصدپه اسلامي تعليماتوعمل کول ؤ ، مګرنن صباځينې خلک داسلام دشعائرو اواساساتوڅخه مخ اړوي اوسپک يي ګني ، اوحال داچې اسلام بشريت ته دژوندډيرمکمل دستورالعمل وړاندي کړي دي ، چې پکی دپيدايښت له ورځي نيولی بياترمرګه پوري دژونددهر اړخ اوهرې شعبې پوره تعليم اولارښوونه موجوده ده ، دژوندله شعبويوه هم دانسان دشرم اوحياشعبه ده ، چې هيح ورڅخه داسلام دمبارک دين ارشادات ورڅخه په ځنګ تيرشوي نه دی ، اوقرآن کريم خلکوته دويده کيدلو اوپورته کيدلو ترطريقي پوري په هغوبحثونه کړي ، اودې خبرې ته ئي خاصه توجه کړی چې دارام کولو

پروخت (کله چې انسان له خپله ځانه هم خبرنه وي ) بغیر له اجازې اوټک وټوکه هغوته مه ورننوزئ چې دابیاکیدای شي ددواړولپاره دخجالت سبب وګرزي.

قرآن کریم انسان ته دسپېڅلي ټولني جوړولو لارښوونه کړې ده ترڅویوانسان دبل په ازادي کي خنډوانه چوي اودهغې دتاوان اوله منځه تلو سبب نشي . اوټول انسانان په ارامي اوسوکالي سره ژوندوکړي څوک چې خپله ټولنه داسلامي اخلاقو اوآدابو پابنده نه جوړوي هغه به پخپله هم ( بلکه دنوروزیات ) په سختیواوتکلیفو کي واقع وی اوپه خپلو ضرورتواوغوښتنو کي به دتنګی اوپریشانی بارپراوړو وړي.

رَبَّنَاتَقَبَّلْ مِنَّااِنَّکَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْم

(محمد رفعت قاسمي)

هغه کتابونه چې په دي کتاب کي کارورڅخه اخستل شوي دي:

تفسیرحقانی ،روح المعانی ،تفسیربیان القران ،احکام القرآن جصاص ، بیان السبحان
تفسیرابن جریر، تفسیر ابن کثیر ، الادب المفرد ، معارف القرآن ، المنجد
تفسیرمظهری، القاموس ،تفسیرجلالین ، تفسیرکبیر،اداب المعاشرت ،صحاح الستة



## داداب وملاقات دمسائلو ضمیمه :-

### سلام اواسلام

(وَإِذَا حُيِّيْتُم بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ حَسِيبًا)په دغه اية شریف کي الله ﷻ دسلام اودهغه دادابوښوونه کړیده.

### دتَحِيَّة دلفظ څیړنه اودهغې تاریخی اړخ

دتَحِيَّة دلفظ معنی څاته د(( حَيَّاکَ الله )) ویل دي چې پښتوژباړه ئي داسی ده (خدای ﷻ دی تاژوندی لري ) داسلام ترراتلو مخکي دعربوعادت داووچې کله به له یوبل سره مخامخ کیدل نودابه ئي ویل (( حَيَّاکَ الله ))یا(( اَنْعَمَ اللهُ بِکَ عَيْناً )) یا(( اَنْعِمْ صَبَاحاً )) اوداسي نوروکلموپه ویلو به یي سلام کاوو ، خواسلام ددوي دغه طریقه په ((اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ )) سره بدله کړه چې په پښتوئي ترجمه داسي کیږي (( ته دي له هرډول غم اوتکلیف څخه روغ اوسلامت یي )) ابن عربی رحمة الله علیه په خپل کتاب احکام القرآن کي لیکلي دي : د«سلام » کلمه دپاک خدای ﷻ له نومونوڅخه یونوم دی اود((اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ ))معنی داده ( اللهُ رَقِيْبٌ عَلَيْكُمْ ) یعنی الله ﷻ ستاسو ساتونکي دي.

### اسلامی سلام دټولو قومونوترسلام بهتردی :

ددنیاهرپرمختللی قوم دارواج لري چې کله له یو،بل سره مخامخ کیږي نوله [illegible] دڅ ګندولو لپاره حتماً یوه نه

یوه کلمه وايي ، مګر که ددوی دغه رنګارنګ کلمې او اسلامي سلام
سره پرتله شي ، نو هغه وخت به هرڅوک وپوهیږي چې اسلامي سلام
ترهغو څومره مناسب او جامع دي ؛ځکه چې په دې کې یوائې دمحبت
اظهار نه بلکه ترڅنګ یې دمحبت دحق داداکولو کارهم شوی دی چې
هغه دادعاده چې یوانسان ئې بل انسان ته کوي ، چې پاک خدای ﷻ
دې تاله هررنګه افتونو اوغمونو څخه سلامت وساتي ، برسیره پردې
دادعا دعربو په طرزصرف د ژوندکولو نه بلکه دښه اونیک
ژوندکولو دعاء ده. په دې دعاسره ددې اظهارهم کیږي چې زه اوته
دواړه پاک خدای ﷻ ته محتاج یو اوبغیردهغه له اجازې یواوبل ته
ګټه نشورسولای ، ددغې معنی په اعتباردایوعبادت هم دی
اویومسلمان وروته دخدای ﷻ دوریادولو ذریعه هم ده.
ددې ترڅنګ که ګوروچې یوڅوک له الله ﷻ څخه غواړي چې زماټول
ملګري یادوستان له ټولو افتونو اوبلاګانو څخه وساته ، نوګویاهغه
په ضمن کې داوعده هم کوي چې ته زماله ژبې اولاس څخه په امن کې
یې اوزه ستادمال اوځان ساتونکې یم.

### سلام څه شی دی ؟

ابن عربی رحمة الله علیه په خپل کتاب احکام القرآن کې دامام ابن
عیینه رحمة الله علیه دغه قول رااخیستی دی چې فرمایي:
(اَ تَدْرِي مَالسَّلَامُ ؟ یَقُوْلُ اَنْتَ آمِنٌ مِنِّي ) ایاته پوهیږې چې سلام څه
شی دي ؟ دسلام ویونکی بل چاته وایي چې ته له ماڅخه په امن کې
لنډه داچې اسلامي سلام یوزیوال جامعیت لرونکی دی (۱) په



هغه کې دالله ﷻ یادموجوددی (۲) دخپل مسلمان وروسره دمحبت
اودوستۍ اظهارشوی دی (۳) دادمسلمان لپاره یوه بهترینه دعاده
(۴) داله هغه سره یوډول وعده ده چې زماله لاس اوژبې څخه به تاته
کوم ضرراوتکلیف نه رسیږي اوته به له ماڅخه په امن کې یې ؛ لکه
چې سیدالمرسلین نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم فرمایي
: (اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِهٖ وَيَدِهٖ ) (الحدیث ) یعنی
مسلمان هغه دی چې ټول مسلمانان دهغه له لاس اوژبې څخه محفوظ
وي ، اوبل چاته ئې تکلیف نه رسیږي ، څومره ښه خبره به وای چې
مسلمانانو دغه کلمه دعاموخلکو درواج په ډول نه استعمالولای ؟ !
بلکه لومړی ئې دهغې په حقیقت ځان پوه کولای اوبیایی له دغې
کلمې څخه کاراخیستلای ، نوبیاددې ډیرامیدکېدای شوای چې
دادټول قوم داصلاح اوسمون لپاره کافي شوی وای. همدا وجه ده چې
نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم په مسلمانانو کې یواوبل ته
دسلام پراچولوډېرټینګارکړی دی اوهغه یې افضل الاعمال بللی دی
اودهغه فضائل ، اجرونه اوثوابونه یې په حدیثونو کې بیان کړي دي
لکه چې داحادیثو دمشهورکتاب صحیح مسلم شریف په یو مبارک
حدیث کې هغه ﷺ فرمایي : (( تاسو ترهغه وخته جنت ته نشئ
داخلیدلای ترڅومؤمنان نشئ اوستاسو ایمانونه ترهغه وخته نشي
مکمل کیدای ترڅوله یواوبل سره محبت ونکړئ ؛زه تاسو ته
یوداسې شی نښیم ؟چې که تاسو په هغه عمل وکړئ نوستاسو ترمنځ

به محبت پیدا شي ؛ هغه داچې پخپلو منځوکی دسلام اچول عام کړئ ، یعنی په هر مسلمان باندی سلام اچوئ که تاسو یي پیژنئ اوکنه.))

له حضرت عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهماځخه روایت دي چې یوچاله نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ځخه پوښتنه وکړه چې داسلام په اعمالو کي بهترین عمل کوم دی ؟ نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ورته وفرمایل : چې خلګوته ډوډۍ ورکوه اوسلام عام کړه (یعنی پرهر مسلمان ئي اچوه که ئي پیژني اوکنه ) (صحیحین)

مسنداحمد ، ترمذی ، ابوداؤدله حضرت ابو امامة رضی الله تعالی عنه ځخه نقل کړی دی چې: نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم وفرمایل : دالله ﷻ په نزدترټولو زیات نژدي هغه څوک دی چاچې په سلام ویلو کي لومړی توب وکړ.

په مسندبزاراومعجم کبیرطبرانی کي دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه حدیث دی چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم وفرمایل: سلام دالله ﷻ له نوموځخه یونوم دی چې الله ﷻ ځمکي ته رالیږلي دی ، نوتاسو سلام په خپلو منځوکي عام کړئ ،ځکه چې کله یو مسلمان مجلس ته ورځي اودورتلو پروخت پرهغوسلام اچوئ ، نوهغه ته دالله ﷻ په نزد دبهترۍ یولوړمقام په دې وجه حاصلیږي چې هغه دمجلس ټولو خلګوته پاک خدای ﷻ وریادکړ.که دمجلس خلګو ځواب ورنه کړنوهغه څوک به ورته ځواب ورکړي چې ددغه مجلس ترخلګوبهتردی یعنی دالله ﷻ فرښتې.



همدارنګه په یوبل حدیث شریف کي د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ارشاد دی : چې ترټولو لوی بخیل هغه دی چې په سلام اچولو کی بخالت کوي . (طبرانی ، معجم کبیر له ابی هریرة رضی الله تعالی عنه ځخه ) خوکه غواړئ د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ددغوارشاداتو هغه اغیزه (اثر) چې پرصحابه کراموئي کړي ؤ معلومه کړئ ،نوددې لپاره دغه یو عجیب روایت کافي دي چې: عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهمابه ډیروخت بازارته ددې لپاره تلی چې یومسلمان پیداکړي اوهغه ته سلام ورواچوي اودعبادت ثواب وګټي .هغه به بازارته دڅه اخستلو یاخرڅولولپاره نه تلی بس همدابه ئي مقصد ؤ، دغه روایت په موطأ امام مالک کي له طفیل بن ابی کعب رضی الله تعالی عنه ځخه نقل شوی دی.

**دسلام ځواب اود نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم عمل:**

په تیرومخونوکي دقرآن کریم کوم ایت چې ذکرشوی ؤپه هغه کي داارشادشوی چې که تاسو ته سلام درواچول شي ، نوتاسو ترهغه بهترځواب ورکړئ اویاکم ازکم هغه الفاظ خووواییئ ددې پوره وضاحت نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم په خپل دغه عمل سره فرمایلی دی : چې یووخت نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ته څوک راغی اوویي ویل (السَّلامُ عَلَیْکَ یَارَسُوْلُ الله ) نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم په ځواب کي ورته وویل : (وَعَلَیْکُمُ السَّلامُ وَرَحْمَةُ الله ) د وَرَحْمَةُ الله جمله ئي پکي زیاته کړه ،

څه وخت وروسته بل سړی راغی اوويې ويل : (السَّلامُ عَلَيْکَ يَارَ[سُو]
لُ اللهِ وَرَحْمَةُ اللهِ) نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم په ځوا[ب]
کي ورته وويل : وَعَلَيْکُمُ السَّلامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَکَاتُهُ ) اوڅه وخ[ت]
وروسته بل سړی راغی اووئي ويل : (السَّلامُ عَلَيْکَ يَارَسُوْلُ الل[ه]
وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَکَاتُهُ )د(وَرَحْمَةُ اللهِ )او(وَبَرَکَاتُهُ ) جملي يې هم پک[ي]
وويلي نو نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم په ځواب ک[ي]
ورته وويل: (وَعَلَيْکُمْ) دهغه نفرپه زړه کي ګيله پيداشوه اوعرض ي[ې]
وکړچې: ای دالله ﷺ رسوله ! زماموراوپلاردي ترتاقربان وي ترما[...]
مخه چې څونفرراغلل تادهغوپه ځواب کي ددعاڅوکلمي زياتې کړې
، خوماته دی صرف په (وَعَلَيْکُمْ) سره ځواب راکړ، نبی کريم صلی
الله تعالی عليه واله وسلم ورته وفرمايل: تاتولي کلمي پخپل سلا[م]
کي سره راغونډې کړې نوځکه ماهم دقرآني لارښووني سره س[م]
ستاځواب په بالمثل درکولو سره وکړ. له مخکني حديث شريف څخه
يوداخبره معلومه شوه چې په ايت کي کوم حکم راغلی دی چې ځواب
ترمخکينوالفاظوپه ښوالفاظو ورکوئ دهغه صورة دادی چې کو[م]
الفاظ چې سلام ژيونکي ويلي وی تاسو په ځواب کي ترهغه په
زياتوالفاظوځواب ورکوئ يعني که هغه وويل (السَّلامُ عَلَيْکُمْ)
نوتاسو ځواب داسی ورکوئ چې( وَعَلَيْکُمُ السَّلامُ وَرَحْمَةُ اللهِ) اوکه
هغه وويل چې( السَّلامُ عَلَيْکُم وَرَحْمَةُ اللهِ) نوتاسو ځواب داسې
ورکړئ چې( وَعَلَيْکُمُ السَّلامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَکَاتُهُ )دوهمه داخبره
ورڅخه معلومه شوه چې ددغوکلموزياتوالی صرف تردوو کلموپورې



سنت دی ، تردی زيات سنت نه دی اوددې حکمت ډيرڅرګنددی چې
دسلام دوخت تقاضی داده چې کوتاه خبري بايد پکي وشی په هغه
کي دومره زيادت مناسب نه دی چې ورڅخه په کوم کارکي تاوان
پيښ شي يااوريدونکي ته تکليف شي . نوله دې خاطره چې دريیم
سړی په سلام اچولو کي ټولي جملي وويلي نو نبی کريم صلی الله
تعالی عليه واله وسلم په هغه کي له نورزيادت څخه احتراز وکړ.
دريیمه خبره له دغه حديث شريف څخه دامعلومه شوه چې که سلام
ويونکي په خپل سلام کي دري واړه جملي ووايي اوتاسو په ځواب
کي يوه کلمه ووايئ نوهم داداء بالمثل په حکم کي په قرآني حکم چې
(اوردُّوها ) دی دعمل کولو لپاره بس دی لکه چې نبی کريم صلی الله
تعالی عليه واله وسلم يوارصرف په يوه کلمه سره بسوالی کړی ؤ.

## خلاصه

دايت د مضمون لنډيز داشو چې کله کوم مسلمان ته سلام ورواچول
شي ، نودهغه په ذمه ځواب واجب شو ، که بې له څه شرعي عذره بې
ځواب ورنکړنوګناهګاردی ، خوپه ځواب ورکولو کي بياهغه لره دوه
اختياره شته ، لومړی داچې په کوموالفاظوچې سلام وربانډی ويل
شوي دی ،ترهغه په بهتروالفاظودي ځواب ورکړي ، اودوهم داچې
په بعينه هغوالفاظودي ځواب ورکړي.
په دغه ايت شريف کي خودسلام ځواب ورکول په ښکاره ډول واجب
اولازم ښودل شوي دی مګرداول سلام ويونکي درجه په ښکاره ډول
نه ده بيان شوي ، خوکه د(إِذَا حُيِّيْتُم) لفظ ته ځيرشونوپه هغه کي دې

طرفته اشاره شوي ده ځکه چې دغه لفظ د مجهولی په صیغه بغیردفاعل له معلومولوذکر کیدای شي چې سلام داسي یوشی دی چې عادة یې ټول مسلمانان کوي په مسنداحمد، ترمذي، اوابوداؤدکي د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دغه ارشادنقل شوی دی چې: دپاک خدای ﷻ په نزد ډیرمقرب (هغه چې نزدیکت اودوستي ورته حاصله وي ) هغه څوک دي چې په سلام اچولو کي ځان رومبی کوي۔

تاسو په سلام باندي د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ټینګناراودسلام فضیلت په خپلو سترګوپه هغوارشاداتوکي ولیدل چې مخکي تیرشول له هغوڅخه ډیرډیرمعلومیږي چې په سلام کي ځان رومبی کول ترسنت مؤکدکم نه دی.

په تفسیرمحیط کي لیکلي دي چې داکثروعلماؤ په نزد لومړی سلام سنت مؤکد دی.

اوحضرت حسن بصری رحمة الله علیه فرمایلي دي چې (السّلام تطوع والرّدُّ فریضة ) یعني په اول وارسلام ویلوکي اختیاردي، خوځواب ورکول ئي فرض دي.همدارنګه نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دقرآن کریم ددغه حکم په اړ وندنورتفصیلات هم دتشریح په ډول فرمایلي دي، چې موږ هغه هم دلته داختصار په ډول وړاندي کوو۔

دصحیحینو(بخاری،مسلم ) په یوحدیث کي راغلي دي چې په څه شی کی سپوروي نوهغه ته پکارده چې پرپیاده خلکوسلام واچوي،



اوهغه څوک چې روان وي هغه دی پرناستوخلګوسلام واچوي، اوکوم خلک چې په شمیرکي کم وي اوپه یوه بله ډل باندی تیریږي نوهغوته پکارده چې په سلام ویلو کي لومړی والی وکړی.

دترمذی شریفې په یوحدیث کي راغلی دی چې کله یوانسان خپل کورته ورځي نوپکاردی چې پر کوروالو باندی سلام واچوی ځکه چې په دی سره هم هغه ته برکت حاصلیږي اوهم دکورخلکوته.

دابوداؤدشریف په یوحدیث کي راغلي دی چې که تاسو له یومسلمان سره په واروارویني نوپه هر وارکي وربانډی سلاو اچوئ، اوپه څه ډول چې داول وارلیدلو سلام سنت دی همهغه رنګه درخصت کیدلو پروخت هم سلام ویل سنة اودثواب کاردی، دمضمون په پای کی یي وفرمایل: (إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَسِيبًا)یعنی الله ﷻ دهرشي حساب اخیستونکي دي چې پکي انسان اواسلامي حقونه لکه سلام اودهغه ځواب اونورداخل دی چې ددغوبه هم پاک خدای ﷻ حساب اخلي۔(معارف القرآن ۲/ توک له ۵۰۱ څخه تر۵۰۲ پوري)

**په سلام اچولوکي دلومړیتوب فضیلت:**

حضرت ابوامامة رضی الله تعالی عنه وایي:چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم وفرمایل: ترټولو خدای ﷻ ته نژدې هغه څوک دی چې په سلام ویلو کي لومړیتوب وکړي. (احمد، ترمذی،ابوداؤد)

دغه فضیلت په هغه چاکي کیدای شی ( یعنی ددغه لفظ مخاطبین هغه څوک دی ) چې دلاری پرسرله یواوبل سره مخامخ شي، ځکه چې په هغه حالت کي دوی دسلام دلومړی کولو په حق کی سره برابردی،

نوچې هريوه يې وارړومبى کړ نودغه فضيلت يې په برخه شو، اوکه ددې برخلا ف داسې وشول چې يوڅوک ناست ؤ اوبل څوک ورته راغلى ، نودسلام ويلوحق دهغه چادى چې راغلى وي ، نوکه هغه راغلي سړى لومړى سلام واچوي نودغه فضيلت يې نه دى ګټلى اوکه ناست سړى په سلام کى ځان مخکې کړ، نودغه فضيلت ورپه برخه شو ، ځکه چې راغلى سړى دسلام په لومړى والي سره صرف هغه حق داء کړچې پرهغه لازم ؤ.

دحضرت عمر رضى الله تعالى عنه په باره کې نقل شوي دي چې هغه به فرمايل : درې شيان داسې دى چې که مسلمانان يې ورخپل کړي نودوى په خپل منځې تراوونوکي به ټينګښت راولې اوداهغه شيان دي چې په يومسلمان کې له بل مسلمان سره دمحبت اواخلاص نيت اواراده راژوندى کوي ـ اول : دليدوکتوپروخت په سلام ويلوکي لومړيتوب دوهم : مسلمان وروته په هغه نامه خطاب کول اوهغه رابلل چې هغه وربانديې خوشحاله کيږي . دريم کله چې يومسلمان مجلس ته راشي نوهغه ته په عزت اواحترام سره ځاى ورخالي کول.

**مسئله** :- که کله په تلو راتلو کې دوه نفرسره مخامخ شو ل چې دواړه يوشان نوعيت لرونکې ؤ ، يعنې دواړه پياده ؤاويادواړه سپاره ؤ، نوکوم چا چې لومړى سلام واچاوو ، نوهغه ګواکې ددې څرګندونه وکړه چې هغه الله ﷻ له غروراوتکبرڅخه پاک ساتلى دى.



**مسئله**:- سلام اچول سنت دى اودسلام جواب ورکول فرض دى ،که يوڅوک مجلس ته ورشي اوهلته په خلکو سلام واچوي ، نوپه مجلس کې ناستوخلکوباندى ځواب ورکول فرض دى.

اوکه هغه نفردوهم واربياراغى اودمجلس خلکوته يې سلام واچاوو نوبيايې ځواب پرهغو خلکوباندى فرض نه ، بلکه مستحب دي

**مسئله**:- په سلام اودهغه په ځواب دواړو کې بايددجمعې له صيغوکاروااخستل شي که څه هم تاسو يونفرته سلام اچوئ ، يادېوه نفردسلام ځواب کوئ ترڅوهغه فرشتې چې له انسان سره شته هم په خطاب کې ورګډې شي .(مظاهرحق/۵ټوک/۳۵۹مخ

**مسئله**:- که يوڅوک دسلام اچولوپروخت په داسې کارمشغول وي چې له شريعت سره خلاف وي ، نوهغه دسلام دځواب حق نه لري.
(مظاهرحق/۵ټوک/۳۵۹مخ)

## څوک به پرچاباندى سلام اچوي ؟:

حضرت ابوهريرة رضى الله تعالى عنه ويلي دي چې نبى کريم صلى الله تعالى عليه واله وسلم وفرمايل : چې يوڅوک پريوشي باندى سپوروي هغه به پرپياده ( په پښوروان ) باندى سلام اچوي ، اوڅوک چې روان وي هغه به ناستوخلکوته سلام وراچوي ، اودخلګوکوچنى ډله به لويه ډلي ته سلام وراچوي .(بخارى،مسلم )

**مسئله** :- د نبى کريم صلى الله تعالى عليه واله وسلم ارشادچې سپاره خلک به پياده خلکوته سلام وراچوى په اصل کې حکم دى اودغه حکم دخاکسارې اوتواضع په لوري دترغيب اوهڅولو لپاره دي ،

ځکه چې که یوڅوک دسپریدلو وسیله لکه آس ، موټر ، اوداسي نورولري نوښکاره خبره ده چې پاک خدای ﷻ هغه ترپیاده خلکوهوسااوپورته کړي دي ، نوهغه ته پکاردی چې عاجزي اوتواضع غوره کړي .همدارنګه هغوخلکوته هم چې په شمیر کي کم وي پکارده چې له داسي خلکوسره چې په شمیرکي تردوي ډیروي دمخامخ کیدوپروخت دعاجزی اوخاکساری په وجه اودهغودډیروالي داحترام له امله په سلام اچولوکي لومړی توب وکړي ، امام نووي رحمة الله علیه فرمايي :چې که یوڅوک له یوې ډلي خلکوسره مخامخ شي یاهغوته ورشی اوغواړي چې هغوټولوته سلام وانه چوي بلکه له هغوڅخه .ئي څوخاصونفروته اچوي ،نوداکارمکروه دی ځکه چې دسلام اصلی اوبنیادي مقصد دخلکوترمنځ محبت اونژدیکت راوستل دي ، کله چې یوڅوک له مجلس څخه یوڅوخاصو کسانوته سلام اچوي ، اونورپریږدي نودپاته خلکوپه زړه کي دډاراوپردي والي احساس پیداکیږي ، اودغه شیان بیاډیروخت دنفرت اودښمنۍ سبب ګرزي.

**مسئله**- دبازار،عامولارو اوسړکونو حکم له دې څخه جلادي ، ځکه چې په بازاراوعامولاروکي چې هر څوک ورباندئ تګ راتګ کوي، ځینوخاصو خلکوته سلام اچول کافی دي ، ځکه چې که یوڅوک په بازاریاعامولاروکي هرچاته سلام وراچوي ، نوورڅخه خپل شخصی ژونداوکارته خلاصیدل ئي امکان نه لري.



اوحضرت ابوهريرة رضی الله تعالی عنه ویلي دي: چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم وفرمایل: کوچنیان لویانوته ، روان ناستوخلګوته اوکوچنۍ ډله دي لویه ډلي ته سلام اچوي (بخاري ، مسلم)

**تشریح** :- علماؤ لیکلي دي چې پورتنی حکم داسي دي چې کله یونفرله دي خواروان وي اوبل له هغې خواراروان وي اوبیاسره مخامخ شي نوکوچنیان به لویانوته سلام اچوي خوکه مجلس تیارجوړ و اوڅوک ورغلی ، نوورتلونکي سړي به لومړی سلام اچوي که کوچنی وي که لوی ، که دمجلس ترخلګوډیروي اوکه کم.

(مظاهر حق جدید/۵ټوک/۳۳۹مخ)

### څه وخت بایدسلام واچول شي ؟

له حضرت ابوهريرة رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم وفرمایل: یوڅوک له تاسو څخه چې له بل مسلمان وروسره ملاقات کوي ، نولومړی بایدسلام ورواچوي ، اوله هغه وروسته که ددوي ترمنځ دورمړه لیریوالی راشي چې یوه ونه ، یادیوال یالویه ډبره یي ترمنځ پرده شي اوبیابیرته سره ورشي نوبیادی دوهم وارهم ورته سلام واچوي.

**تشریح** :- مطلب دادی چې له دومره لږ جلاوالي وروسته هم سلام اچول مستحب دي .هغه خوپریږده چې ترلیري ځایه ولاړ شي اوبیابېرته راشي ، ګویادغه حدیث شریف دسلام مستحبوالی اوپه هرځای کي ددغه دادب دلحاظ ساتلو بیان دمبالغي (تراصلی اندازې زیات ښه والی ) په طور کړي دي ، خودابایدپوره په یادولرئ چې

دسلام ددومره لوړارزښت باوجود داسي ځايونه هم شته چې هلته بايدسلام وانه چول شي ، لكه : هغه چاته سلام وراچول مكروه دى چې غټې ياوړې بولي كوي ، ياپه ټټي كي وي ، ياپه جماع (هم بسترى ) لګياوي ،اويابه همدغه رنګه بل كار كي مشغول وي اوپرهغه ئي ځواب هم واجب نه دى. دغه رنګه كه څوك ويده وى ياپه حال كي نه وي ، ياپرلمانځه ولاړوي ، يااذان كوي ، ياپه حمام كي وي ، ياخوراك كوي،ګوله ئي په خوله كي وي ، اوسلام ورواچول شى نوسلام اچوونكي دځواب اخستلو حق نه لري . دخطبې پروخت هم بايدسلام وانه چول شي ، اونه بايددبل چاسلام ته ځواب وويل شي ، اوهغه چاته هم بايدسلام وانه چول شي دقرآن كريم تلاوة كوي ، خوكه چاپرتلاوة كونكي سلام واچاوو نوتلاوة كونكي ته پكاره ده چې تلاوة ودروي اوځواب وركړي ، اوبيابيرته داعوذ بالله په ويلو په تلاوة پيل وكړي .(مظاهرحق /۵ټوک/۳۴۸مخ)

علامه ابن كثير رحمة الله عليه ليكلي دي چې دغيرمسلم ، فاسق ، اوبدعتى سلام ته ځواب ويل واجب نه دى ، تفسيرسراج ليكي چې كافرته سلام وراچول جرم دى مګردځينومشائخوويناده چې كه په هغه زمانه كي داضرورت وي چې كافرته سلام ورواچول شي نوبياروادى ، مګر بهتره داده چې په زړه كي دى نيت نه كوي بلكه صرف دلاس اشاره دى ورته وكړى اوكه په ژبه هم ووېل نوپه زړه كي دي ملائيكي ورته نيسي ، كه څه هم په ظاهره داسي معلوميږي چې غيرمسلم ته سلام واچول شو مګرپه باطن كي خونيت پركافردسلام



ويلو نه ده . كوشش بايددضرورت په صورة كي داوشي چې د(هَدَاكَ الله ) په ډول جملوسره ورسره دتعلق اظهاروشي ،خودتأ سف ځاى دى چې دنن سبامسلمان داسې كسانوته دسلام په خپلو الفاظوسره داكاركوي ، اوداډيرنامناسب كارده.

**مسئله**- لمونځ كونكي ، خطبه ويونكي اوپه حج كي دلبيك ويونكي ته سلام وراچول سنت نه دى اونه پردوي ځواب واجب دى.

**مسئله**- دقرآن كريم ياحديثو ويونكى ، ياعلمي مذاكرى كونكى ته سلام مه اچوئ.

**مسئله**- داسنت دى چې كله يونارينه خپل كورته ورځي ، نوپرخپله ميرمن باندى دى سلام اچوي. اوميرمن دي پرخپل خاوندباندي سلام اچوي ، همدارنګه په خپلوانوكي پرمحرمو( چې دسلام ويونكي نكاح ورسره حرامه وى ) ښځې ته سلام اچول سنت دى.

**مسئله**- كه څوك دشطرنج لوبه ياداسي نوري لوبى كوي يااواز(غزلى )وايي ، ياكوتري الوزوي و يادغه رنګه بل كاركوي ، نوهغه ته بايدسلام وانه چول شي .(تفسيربيان السبحان /۱ټوک/۴۹۱مخ)

**مسئله**- كه يوڅوك يواځې ؤ نودسلام لمړى كول ورباندى عينې سنت دى ،اوكه يوه ډله وه نوكفايي سنت دى ، يعنې كه له ټولې ډلې څخه يونفرسلام واچاوو (ياله ټولي ډلي څخه يوه نفرسلام ته ځواب وركړ ) نودټولوغاړه خلاصه شوه مګر ثواب ئي صرف دهغه چاد ى چې سلام ئي ويلى دى ((اوځواب ئي وركړى دى )) كه يوه نفرته ډيروخلكوپه يوه وارسلام واچاوو ، نودهغوټولو لپاره دځواب ويونكي يوځواب

کافي دي ، که پريوه ډله باندی سلام واچول شی نوپرټولو باندی يې ځواب واجب دی خوکه يوه له دوی څخه ځواب ورکړنودټولو غاړې ورباندی خلاصيږي.(تفسيربيان السبحان /۱ټوک/۴۹۱مخ ، مظاهرحق /۵ټوک /۳۴۷مخ)

**مسئله :-** که په کورکي هيڅوک نه ؤ نومناسب ده چې دسلام پرځای دغه کلمات ووايي (السَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِيْنَ) ترڅو هغوفرشتوته سلام ورسيږي کومې چې په هغه ځای کې اوسي. (مظاهرحق /۵ټوک /۳۴۸مخ)

**مسئله :-** سلام بايدترخبرومخکې وي ، ترديې چې په څه ويلو پيل وکړي لومړی بايدسلام واچوي ، اوبياخپلې خبرې پيل کړي ، ترسلام مخکې خبرې کول سم کارنه دی.

**مسئله:-** هغه چاته چې اذان يااقامت کوي ياددينې کتابونوتدريس کوي ،ياپه کوم انساني ضرورت لکه استنجاء لګياوي هغه ته نه سلام وراچول روادی اونه پرهغه دسلام ځواب ورکول واجب دی. (معارف القرآن /۵ټوک /۵۰۲مخ)

**دسلام ويلوادنی درجه :**

**مسئله :-** دسلام اچولو کمه درجه (السَّلَامُ عَلَيْكُمْ) دی ،خوکه (السَّلَامُ عَلَيْكَ) وويل شی يا(سَلَامٌ عَلَيْكَ) وويل شي نوهم کافي دي ، اودسلام دځواب ادنی (کمه) درجه (وَعَلَيْكَ السَّلَامُ) يا (وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ) ويل دي ،اوکه د(واوحرف)ورسره ونه ويل شي نوهم کافی دی.



**مسئله :-** پر دې خبره دټولو علماؤ اتفاق دي ، چې که په ځواب کې صرف (عَلَيْكُمْ) وويل شي نوځواب نه پوره کيږي ، اوکه واوهم ورسره وويل شي يعنی (وَعَلَيْكُمْ) نوپه هغه صورة کې بيادځواب دپوره کيدوقولونه هم شته اودنه پوره کيدوهم شته .(مظاهرحق /۵ټوک /۳۴۵مخ)

**مسئله :-** که يوڅوک تاسو ته ووايي چې (السَّلَامُ وَعَلَيْكَ) نوتاسوئې په ځواب کې (وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ) ووايئ ؛اوکه څوک درته ووايي چې (السَّلَامُ وَعَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللهِ) ،نوتاسو يې په ځواب کې (وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ وَمُغْفِرَتُهُ) ووايئ.

**مسئله:-** بهتره داده چې ځواب په (وَعَلَيْكَ السَّلَامُ) ياپه (وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ) سره وويل شي.

**مسئله:-** که دوه نفره په داسې حال کې سره مخامخ شول چې دواړوپواوبل ته وويل (السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، السَّلَامُ عَلَيْكُمْ) نوپردواړوځواب ورکول واجب دي .(مظاهرحق /۵ټوک /۳۳۷مخ)

**دسلام پروخت ټيټيدل**

له حديث شريف څخه په څرګنده‌ول معلومه شوي ده چې دسلام پروخت ټيټيدل ، اوعاجزي ښکاره کول لکه نن سباچې دخلکورواج ده له سنتوڅخه خلا ف کاردی او نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم دغه کارپه دې خاطر نه دی خوښ کړی چې داکاردرکوع په حکم کې دی اورکوع دالله ﷻ عبادة دي.

**مسئله:-** که يوڅوک دچا(مشر، عالم ، پير) مخته په ځمکه ځکيږي يادهغه پښوته پريوزي يادغه رنګه نوربدحرکات کوي ، نوپه دې سره

هغه نه کافرکیږي ، ځکه چې دادعزت کولو په خاطر کوي ، دعبادة نیت پکې نشته ، خوکه دعبادة په نیت یې دغه کارونه کول ، نویقیناً کافرکیږي .(مظاهرحق /۵ټوک/۳۷۱مخ )

**دملاقات پروخت ولاړیدل :**

که یوڅوک دراروان نفردعزت کولو په خاطر ولاړشي ، نوداکار مکروه نه دی ؛بنفسه (پخپله ) په دغه ولاړیدلو کې مکروه والی نشته ، بلکه دافکر کول اوداخوښول چې خلک راته ولاړشوي وای مکروه دی. هغه قیام(ولاړیدل ) هیڅکله هم نه ده مکروه چې دداسي چالپاره وي چې هغه نه دخلکو ولاړیدل خوښوي اونه داغواړي چې خلک راته ولاړشوي وای.

**مسئله**- داچې یوڅوک چاته ولاړیږي اوکنه ددی حق تراوو له ناست نفرسره دی ، یعنی یوڅوک قطعاً داحق نه لري ته به خاماخاولاړیدلي ، اویاولاړیږه.

حاصل دخبرې داشو که تاسو داسي څوک ووینئ چې عالم یابزرګ وي یابهتروي نودهغه دعزت اودرنښت لپاره ولاړیدل روادی اوپه دی کې هیڅ منعه نشته خوداسي چاته ولاړیدل چې له یوې خواددومره عزت حقدارنه وي له بلې خواداهم زړه ورته وایي چې خلک بایدزمالپاره ولاړشوي وای مکروه دی ؛ اودغه رنګه بې ځایه هرکلي اوچاپلوسی (غوړه مالی ) هم مکروه دی .
ددنیالرونکو(شتمنو) لپاره ولاړیدل ددنیاپه خاطر ، اودهغوی عزت کول هم مکروه دی اوپه دې اړوند سخت وعیدونه نقل شوي دي.
(مظاهرحق /۵ټوک/۳۸۰مخ )



اصلاً دغه شي مکروه اوممنوع دی چې یوڅوک ددې لپاره چې عزت اواحترام یې وشي ، اوخلګوته خپل ځان ډیرلوړ وروپیژني داغواړي چې خلک دې زمالپاره ولاړ شي ، اوکه قیصه همدغه ډول نه وي نونه بیاولاړیدل نه مکروه دی اونه ممنوع. (مظاهرحق /۵ټوک/۳۸۳مخ )
اووعیدونه هم دهغه چالپاره دی چې خلګوته دتکبراوغرورپه ډول داحکم کوي چې زمالپاره بایدولاړشئ اویاهغه دې ته مجبوروي چې. هرکله زه راځم نوتاسو بایدولاړشئ.-رفعت قاسمي-

**پردې ښځې ته سلام اچول :**

له حضرت جریر رضی الله تعالی عنه څخه روایت دي چې یووار نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم له ښځوسره تیریدی ، نوپه هغوی ئې سلام واچاوو ( احمد )

**تشریح**: داخبره د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ترمبارک ذات پورې خاصه وه ځکه چې په کومه فتنه یاشرکې داشرف المخلوقات ﷺ دمبتلاکیدوهیڅ ډول ویره نه وه نوځکه هغه ته پرښځوباندی سلام اچول هم رواؤ ، مګر له هغه ﷺ څخه بغیر بل مسلمان ته دامکروه ده چې ښځوته سلام واچوي ، خوکه کومه ښځه ددومره ډیرعمر وه چې ورڅخه دهیڅ ډول فتنې اوضرررسیدلوویره نه وه اونه هغې ته سلام اچولو دنوروخلګوپه نظر کې بدګماني پیداکوله ، نوهغې ته بیاسلام اچول روادی. (مظاهرحق /۵ټوک/۳۴۲مخ )

## غائبانه سلام اودهغه ځواب :

**مسئله** :- که يوڅوک تاسوته دبل مسلمان سلام راورسوی نوپکاردی چې تاسو په سلام راوړونکي باندی هم سلام ووايئ اوپه هغه چاهم سلام ووايئ (يعنی دهغه دسلام په ځواب کي ) چې تاسو ته يي سلام راليږلی دی ، نوددی لپاره چې په دواړو موسلام ويلی وی ددی لپاره په نسائي کي په عين ډول دغه الفاظ راوړل شوی دی ،
(عَلَيْکَ وَعَلی....... االسَّلامُ ) اويا(وَعَلَيْکَ وَعَلَيْهِ السَّلامُ ).

## داشاروپه ذريعه سلام کول :

يهودانواوعيسايانوبه سلام اچاوواودځواب ورکولو پرځای به ئي صرف په اشاروسره بسوالی کاوو ، اودسلام لفظ به يي نه وايو ، کوم چې دادم ؑ اودهغه له اولادې څخه دانبياؤ اواولياؤ سنت اوطريقه ده. کله چې نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم ته کشف وشو چې زمادامت څه خلک دبی لاری په ښکارکيدلو سره دسلام کولو هغه طريقه کاروي کومه چې ديهودانواودنوروقومونوده لکه دګوتوياورغويوپه ذريعه اشاره کول ، لاسونه له يوبل سره جوخت پورته کول ، ملاياسرټيټول ، صرف دسلام په لفظ بسوالی کول اوداسي نور ، نوله دې خاطره نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم خپل امت ته په خطاب کي ددې خبرتياورکړه اوداوعيدئي وفرمايلو چې: څوک دسلام دغه طريقه خپلوي کومه چې له اسلامي شريعت اوزماله سنتوخلاف ده ، نوهغه دې پوه شي چې هغه به زماله ا[illegible] څخه نه شمارل کيږي. (مظاهرحق /۵ټوک /۳۴۷مخ )



## غيرمسلم ته سلام اچول :

**مسئله** :- غيرمسلم ته ( السَّلامُ عَلَيْکُمْ ) مه واياست ځکه چې په سلام کي لومړيتوب په حقيقت کي له اسلامي اخلاقو څخه يواعزازدی چې حقداران يي هغه خلک دي چې داسلام پيروان وي ، ددغه حق اعزازهغه چاته نه شي ورکول کيدای چې داسلام ددين دښمن اودپاک خدای ﷻ له منلو اودهغه دامرونوله پرځای کولو څخه سرغړونه کوي . دغه رنګه له دغوباغيانو اوداسلام له دښمنانوسره دسلام په څيرپه نورلارومحبت منځته راوړل هم نارواکاردی ، خوکه دغه غيرمسلم خلک په سلام ويلو کي لومړيتوب وکړی اوتاسو ته ووايي چې: ( السَّلامُ عَلَيْکُمْ )نوتاسو بايدهغوی په ځواب کي صرف (هَدَاکَ الله ) وواياست. (مظاهرحق /۵ټوک /۳۴۰مخ )

د«ادب » معنی داده چې هغه وينااوهغه کارچې ډيرښه اوستايلو وړ وبلل شي ، اويادادب مطلب دا ده چې هره خبره په سم ډول اوښه طريقه په ښه اومناسب ځای کي وشي اوهر کار له ډيراحتياط ،ښه غوراودقت وروسته ترسره شي ـ ځيني حضراتوداسي ويلي دی چې دادب مطلب دادی چې دنيکۍ اوښه والی لاردځان لپاره غوره کړئ ، اوله ګناه اوبديو څخه ځان وساتئ. (مظاهرحق /۵ټوک /۳۳۵مخ )

نوله دی خاطره که غيرمسلموته دسلام پرځای ددوي دعرض په مقابل کي دادب جمله وويله شي ، نوڅه منعه پکي نشته. (محمدرفعت قاسمي)

## گډوډمجلس ته دسلام اچولو طريقه :

امام نووي رحمة الله عليه فرمايلي دی: چې که يومسلمان پرداسی ټولۍ (ډله) باندي تيريږي ياورشي چې په هغه ډله کي مسلمان اوغيرمسلمان دواړه وي ، نوکه څه هم هلته يوياڅومسلمانان وي نوورتلونکي ته پکارده چې هغې ټولې ډلې ته دمسلمانانوپه نيت سلام واچوي ، دغه رنګه علماؤ ليکلي دی چې دورتلونکي خوښه ده چې (السّلامُ عَلَيْكُمْ) وايي اوپه نيت کي مسلمان نيسي ، اوکه وايي چې (السّلامُ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الهُدٰى) دغه رنګه علماؤکرامو ليکلي دي چې که يوڅوک غيرمسلموته خط ليکي نوهغه الفاظ دي دسلام پرځای ورته وليکي چې نبی کريم صلی الله تعالى عليه واله وسلم دروم بادشاه (هرقل) ته په خپل خط کي ليکلي ؤيعنی (سَلامٌ عَلَى مَنْ اِتَّبَعَ الهُدٰى). (مظاهرحق/۵ټوک/۳۴۳مخ)

## درخصتی سلام اودهغه ځواب :

حضرت قتادة رضی الله تعالى عنه وايي چې نبی کريم صلی الله تعالى عليه واله وسلم وفرمايل: کله چې تاسو له خپلو کورونوڅخه وزئ نوپرخپلو کوروالوباندی سلام اچوئ.

**تشريح** :- دحديث شريف الفاظ (فاودعواهله) دی چې له وداع (رخصت) څخه دی چې ددې مقصددادی چې له کورڅخه دبهروتلو پروخت خپل اهل وعيال څخه دسلام په ذريعه رخصت شئ (يعنی خدای په امانی واخلئ) ، نو همدی ته په فام سره علماؤ ليکلي دي



چې ددغه سلام ځواب واجب نه دي بلکه مستحب دی ځکه چې دغه سلام په اصل کي دعاء اورخصتيدل دی.

او دامطلب ئي هم کيدای شي چې ته خپلوکوروالوته سلام دامانت په ډول پريږده ترڅوته بيرته په خير راشي اوخپل امانت بيرته واخلې لکه چې نورامانتونه اوپس اخستل کيږي.

داخبره په يونه په يوډول دهغه نيک فال په شان ده چې انشاء الله له کورڅخه رخصت شوی به بيرته پخيرراځي اوهغه ته به دبيرته (بيا) سلام ويلو موقع په لاس ورځي.

## له حاجي سره سلام اومصافحه کول :

حضرت ابن عمر رضی الله تعالى عنه روايت کوي چې نبی کريم صلی الله تعالى عليه واله وسلم وفرمايل: کله چې تاسو له حاجي سره ملاقات کوئ نوپرهغه سلام واياست اوورسره مصافحه کوئ يعنی هغه ته لاس ورکوئ اوهغه ته واياست چې زمالپاره دبخښنې دعاوکړه مخته تردې چې هغه کورته داخل شي اوداځکه چې دهغه بخښنه شوي ده. (احمد)

**تشريح** :- هغه څوک چې له خپله کوره دخدای ﷻ کور(کعبې شريفې) ته تللی وی هغه دالله ﷻ ميلمه وي اوڅرنګه چې هرميلمه پال دخپل ميلمانه دهرې رواغوښتنې احترام کوي همهغه رنګه لو ی خدای ﷻ هم دخپلو ميلمنولحاظ ساتي اودوی چې کومه دعاغواړي خدای ﷻ هغه قبلوی ، که هغه دځان لپاره مغفرت اوبخښنه غواړي نوپاک خدای ﷻ دوی ته دغه دولت وربه برخه کوي.

په حج کولو سره انسان داسې ښوک ګرزي چې هره دعايي خداى ﷻ ته قبوله وي ، څه وخت چې هغه مکې مکرمي ته داخليږي بياترڅلويښت ورځي وروسته راتګ پوري همداسې وي . په پخواوختونوکي هم داعادة ؤ چې کله به حاجيان له حج څخه بيرته کوروته راتلو ، نوخپلوان اوعام خلګ به دهغوى مخي ته په دي غرض ورتلو چې دحاجي بخښنه شوي ده اوله ګناه څخه پاک بيرته کورته راروان دي موږ به له هغه سره ستړي مشي وکړو مخته تردې چې هغه په دنياملوث شي ترڅوموږ ته د هغه څه برکت راورسيږي . دغه دحاجيانواستقبال ته ورتللو رواج په اوس زمانه کي هم خوداوخت دپاک اوسم نيت خلک ډيرکم اودنوم لوړولو اوجزباتوخلک زيات دي .

څرنګه چي په دغه حديث شريف کي قيدلګول شوى ؤ ، چې له حاجې سره دکورترداخليدومخکې سلام اومصافحه وکړئ ، هغه ددي په وجه دى چې يوخولاتردغه وخته پورى هغه ددنياپه کاروملوث شوي نه دى اوله خپلو کوروالو اوعيال سره مشغول شوي نه دى اوبل لاتردغه وخته پوري هغه دخداى ﷻ په لاره کي دى اوله ګناهونو څخه پاک اوصاف دى ، نوڅرنګه چې په دغه وخت کي دحاجې صاحب دعاډيره ژرقبليږي نوله دې خاطره وربانده دځان لپاره دمغفرت دعاء وکړئ ترڅوپاک خداى ﷻ هغه قبوله کړي اوتاسو ته دبخښنې اومغفرت نيکمرغي درپه برخه کړي .علماء کراموليکلي چې عمره کونکي ،جهادکونکي ، اوديني علم زده کونکى هم دحاجې په حکم



کي دى يعني کله چي دغه درې ډوله خلک له خپلو کاروڅخه دکورپه لوري راروان شي ، نوتاسو له هغوڅخه هم مخته تردې چې کورته داخل شي مصافحه وکړئ اودځان لپاره ورڅخه دعاء وغواړئ ځکه چې دغه خلک هم بخښل شوي دي .(اللّٰهُمَّ اجْعَلْنِي مِنْهُمْ)
(مظاهرحق /۳توک /۲۷۹مخ)

### دمصافحې فضيلت :

حضرت براء بن عاذب رضى الله تعالى عنه وايي چې نبى کريم صلى الله تعالى عليه واله وسلم وفرمايل: کله چي دوه مسلمانان له يواوبل سره يوځاى کيږي ، اوله يوبل سره دلاس په ذريعه روغ بړ کوي ، نوددوي ترجلاکيدومخکي لوى خداى ﷻ دوي ته بخښنه کوي.
(احمد ، ترمذي ،ابن ماجه)

**تشريح** :- آن حضرت ﷺ فرمايلي دي : کله چې دوه مسلمانان سره ورځي اويوله هغوڅخه پربل باندى سلام اچوي ، نوله دوى څخه خداى ﷻ ته ډيرنژدې اوخوښ هغه مسلمان وى کوم چې په فراخ تندي اوښه طبيعت له خپل ملګري مسلمان سره مخامخ کيږي ، اوبياچې کله سره دوي دوه مصافحه کوي نوپاک خداى ﷻ پردوي سل (۱۰۰) رحمتونه نازلوي ، له هغوسلوڅخه (۹۰) رحمتونه په هغه چادى چې لومړى والى يې وکړ اولس رحمتونه پرهغه چادي چې مصافحه يې وکړه . (مظاهرحق /۷۰مخ)

### دلاس اوغيرې حکمونه :

ديوپياده مسلمان له بل مسلمان سره دملاقات پروخت مصافحه سنت دى مصافحه بايديه دواړولاسووي ، صرف په يوه لاس

مصافحه کول سنت نه دی ، دمصافحې لپاره کوم خاص وخت یاخاصه خوشحالي (مراسم ) ضروري بلل غیرشرعي خبره اوبدعت مذمومه دی ، خوکه یومیلمه داسې وخت مسجدته راغي ، چې خلک په لمانځه مشغول ؤ ، یالمونځ شروع کیدونکي ؤ ، هغه لمونځ وکړ اوله هغه څخه وروستویې له خلګوسره مصافحه کوله نودغه مصافحه بې شکه سنت اوسمه مصافحه ده ، په دې شرط چې هغه ترمصافحې له مخه سلام هم ویلي وي ، کله چې موږ ته دامعلومه شوه چې که څه هم په ټاکل شوي اومکروه وخت کې مصافحه کول مکروه دی ، مګرکه بیاهم یوڅوک په دغه دمصافحې کولو لاسونه ونیسي ، نوله هغه څخه به خپل لاسونه نه راکش کوو ، اوهغه به خالي لاس نه پرېږدو ځکه چې په دې سره هغه غمجن کیږي ، اویومسلمان ته دغم نه رسول دادآدابوتررعایت زیات مهم دی.

**مسئله** :- دروغ بړ لپاره لاس ورکول سنت دي، مګردروغبړطریقه باید داسې وي ، چې دیونفرورغوی دبل نفرپرورغوي برابرشي ، صرف دګوتودسروپه نیولو بسوالی نه دی پکارځکه چې صرف دګوتودسرونونیول دمصافحې هغه طریقه ده چې بدعت ورته ویل شوي.

**مسئله** :- معانقه ( له یوبل سره دسینولګول ) له شریعت سره سم اورواکار دی په خاص ډول په هغه وخت کې چې یوڅوک له مسافرۍ راغلی وي ، مګرددې اجازه هغه وخت ورکول کیدای شي چې دهغې



په وجه په څه شریافتنه کې دمبتلاکیدلو اویادشک اوشبهې پیداکولو خطره نه وي ،

**مسئله** :- هغه معانقه (یوبل ته غیږ ورکول ) چې دبدوخیالو نواوجنسي ارادوتراثرلاندې وی مکرو ه ده ، اوهغه چې دمحبت اوعزت په خاطروی هغه بې له شکه روا ده.(مظاهرحق/۵ټوک/۳۲۸مخ )

**مسئله** :- تقبیل (دلاسونو، تندي ښکولول ) هم هغه وخت روادی چې دڅه فتنې دشک دپیداکولو ویره نه وی ، بلکه ځینوحضراتوددین دبزرګانو،اودسنتودمتابعینوعلماؤلاسونه ښکول مستحب ګڼلي دی ، مګرله هغوسره له مصافحې وروسته خپل لاسونه ښکلول اصل نه لري ، بلکه داد جاهلانو طریقه ده اومکروه ده. (مظاهرحق/۵ټوک/۳۲۸مخ)

**له ښځوسره دنارینه وومصافحه** :

**مسئله** :- دځوانانوسړولپاره له ځوانوښځوسره په لا س پوښتنه کول حرام دی ، اوله هغې زړې ښځې سره په لاس روغبړکولو کې څه منعه نشته چې پکې ورته دجنسي ارادودراپورته کیدوخطره نه وي

**مسئله**:- هغه زاړه (سپین ږیري ) سړی ته چې دجنسي جذبودفتنوجوړولو ورسره هیڅ ډول خطره پاته نوي روادی چې له ځواني ښځې سره په لاس روغبړ وکړي.

**مسئله**:- دښځې په ډول (ښائسته ) بې ږیري هلک سره هم مصافحه کول روانه دی.

**مسئله**.- دابايد هرچاته معلومه وي چې دچاچې ليدل (ياهغه ته کتل ) حرام دي دهغه مسه کول هم حرام دی ،بلکه دمسه کولو حراموالی ترکتلوهم زيات دی. (مظاهرحق /۳توک/۳۲۷مخ )

**دمولاناداشرف علی تهانوي رحمة الله عليه فتوی :**

پوښتنه :- په اخترونوکي مصافحه اومعانقه (لاس اوغيږورکول ) روادی اوکنه ؟

ځواب:- قاعده کليه داده چې عبادتونوته نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم کوم هيئت اوکيفيت ټاکلي دي په هغه کي تغيراوتبديل روانه دی ، نوځرنګه چې مصافحه سنت ده نوځکه له عبادتونوڅخه ګڼله کيږي خوپه دې شرط چې له ذکرشوي قاعدي سره سمه وي يعنی له نقل شوي هيئت اوکيفيت څخه به پکي تيري نه کيږي.اوله نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم څخه دملاقات پروخت بالاجماع يادرخصتي پروخت هم په اختلاف سره نقل شوې ده .بس اوس هغي ته پردغووووختوبرسيره په بله کومه موقع ياځای کي جوازورکول عبادت ته تغير ورکول دی اوداکارمنعه دی نوځکه ويلای شو چې مصافحه وروستوله اخترونواوپنځولمونځومکروه اوبدعت دی.(امدادلفتاوی/۷۰۸مخ دشامي په حواله )

**دمصافحي اومعانقي حقيقت**

داسلام دمبارک دين چې څومره ضروري خبري وي ، په هغوباندی په لومړی وارصحابه کرامو بياتابيعينوبياتبع تابعينو اوورپسي سلافو(رحمة الله عليهم ) عمل وکړ اوپه دغه عمل کي ئي خپل ژوند



تيرکړ ځکه چې له دوی سره ترموږ ډيرزيات دثواب حاصلولو ، ددين دکارکولو اودکوچني اولوی سنت ژوندی کولو مينه اوجذبه وه ، څه شی چې هغودين بللوپه هغه به ئي په هميشني ډول عمل کولو ، اوکوم شيان چې دوی سره له قدرته ونه کړل ، نومعلومه شوه چې هغه ياله دينه څخه نه دی ياضروري نه دی.

دمصافحي اوغاړه په غاړه کيدلو (معانقي ) سنت والی په خپلي طريقي پوري تړلی دی ، سلام مصافحه اومعانقه په عبادت کي داخل نه دی ، اودغه هغه وخت عبادة ، اوکونکی ئي دثواب حقداربلل کيږي چې په هغه طريقه اوډول ترسره شي څه ډول چې نبی کريم صلی الله تعالی عليه واله وسلم کړی ؤ اوکه له هغي سره سمه طريقه نه وي نوپه دې سره به انسان ته دثواب پرځای عذاب ورکول کيږي.

په حديث شريف کي په اخترونوکي اوپنځولمونځونوکي دمصافحي اوغاړه په غاړه کيدلو ذکرهيڅ هم نه دی شوی . اودصحابه کرامو په زمانه کي چې له نبوي سنتوسره يې بې ساری محبت لرلواوله هغوڅخه وروستوداسلافوکرامو له عمل څخه هم په اخترونوکي د دې شيانوثبوت نه دی ترلاسه شوی . په شريعت کي معانقه اومصافحه دملاقات پروخت شته ، نه دلمونځوڅخه وروستوکوموعبادتونوته چې شريعت ځايونه ټاکلی دی نوهغه که په خپل ټاکلی ځای اووخت کي ترسره شی نوبياوربانذی ثواب حاصليږي .دمشکوة شريف شارح ليکلی دی چې بې شکه دشرعي مصافحي وخت دملاقات دپيل وخت دی ، داچي خلک بغير له

مصافحې اومعانقې له یوبل سره یوځای کیږي اودیوبل دخیراوعافیت پوښتنه کوی ، اوبیاچې له لمانځه څخه خلاص شي بیامصافحه اومعانقه سره کوي داڅه ډول سنت دی ؟

**مسئله**- څوک چې په عین وخت کې له کوم بل ځای څخه راغلی نوبیاورسره مصافحه اومعانقه روا ده. مګرخواصوته په کاردی چې له دغې مصافحې اومعانقې هم ځان وساتي ، ترڅوعام خلک داونه وایي چې داکاریاخوددین برخه اویاسنت دی ، اوپه مقابل کې داسې طریقه غوره کړی چې په خلکوکې غم ، غصه ، نفرت اوبیزاری راپورته نشي. دلته که دملاعلی قاری رحمة الله علیه په لارښوونه عمل وشي نوښه به وي ، هغه فرمایي : که یومسلمان بې ځایه تاته دمصافحې لاسونه دروغزوي ، نوته دخپلولاسو په کشولو سره دهغه زړه مه خفه کوه اودبدګمانی سبب یې مه جوړوه بلکه په خوږه ژبه په نرمې سره هغه له مسئلې خبرکړه ، یعني ورته ووایه چې نه داخترونوله لمونځوڅخه وروسته مصافحه اوغاړه په غاړه کیدل سنت دی اونه ترپنځولمونځونووروسته پاک خدای ﷻ دی موږ ټولوته دپوره عمل توفیق راکړي (امین )

**دسلام غلطیانې :**

**مسئله** :-ځینې خلک په خط کې د(السلام علیکم ) پرځای سنت سلام لیکي ، نوکه یوچاته ولیکي له سنت سلامه وروسته عرض دادی ،نوله دی خاطره چی په شریعت کې دسلام صیغه نه ده بلکه (السلام



علیکم دی دغه سنت صیغې ته ځواب ورکول واجب نه دی ، که څه هم داروادی چې سنت سلام ولیکي .(الاضافات/۱۹۹/۷توک)

**فائده** :-

له دې څخه ثابته شوه چې کله موږ وینوچې دځینې مشرانو، بزرګانوپه لیکونوکې لیکل شوی وي چې وروسته له سنت سلام څخه ، دهغووجه داده چې دوی په مخاطب په ځواب واجبیدلو کې احتیاط کوی ،لکه د(پَرَچِيْ) پروخت دالحمدلله سوکه ویل اوسجدی ایة په پټه ویل چې فرمایل شوی دی ، ترڅوپه نوروباندی واجب نشی ،

**مسئله**- په حدیث شریف کې دسلام صیغه (اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ ) اویادې ته نژدې الفاظ دی نودهغه پرځای بل لفظ لکه ،ادبونه ! بندګي! قربان اوداسې نورټول ویل بدعت سیئه دی له دغه رنګه ویناګانوباید په کلکه ځان وساتئ ،څوکه یوڅوک دسلام له لفظ څخه ډیربدوړي نوهغه محترم ته سلامت ! یاتسلیم !یاتسلمات ویلوګنجایش معلومیږي .(فروع الایمان/۷۵مخ)

**مسئله** :- ځینې خلګ دسلام په ځواب کې سرټیټول ، یاصرف لاس پورته کول کافي بولی په دې ځان پوهول په کاردی «په قرآن کریم کې ارشاددی چې کله تاسو ته څوک سلام وکړی نوتاسو ورته ترهغه ښه ځواب ورکړئ اویاکم ازکم بیرته په عینې هغوالفاظوځواب ورکړئ.

له دې څخه څرګنده شوه چې دسلام په ځواب کې سرټیټول یاصرف

لاس پورته کول کافی نه دی ،په دغه ډول ځوا ب ، ځواب نه ګڼل کیږي ، په ژبه ځواب ورکول ستاسو پرذمه پاتي ده.

**مسئله**:- په نن سباخلکوکی داعادت دی چې دسلام کولو پروخت لاس پورته کوي ، چې ددې عادت پرېښودل زماله نظره ډیرزیات ضروري دی ؛ ځکه چې دسلام په اداء کولوکي دلاس هیڅ کارنشته ، دلاس پورته کول دعزت کولو لپاره دی «چې یوله ناسموکاروڅخه دی

.(مقامات/۳۰۰مخ)

**مسئله** :- ځیني ښځې نن سباپریوه اوبله سلام اچوي ، ددوي دغه سلام دشریعت نه فاعدی سره بالکل په ټکر کي وي ، اوآن دوي کله وخت دسلام پرځای دسام کلمه وایي چې داغلط لفظ دی ، اوحال دادی چې ښځي هم بایددسلام ویلواومصافحی کولو رواج اوعادت ولري ، په دې کي ددوي لپاره هم ثواب شته . (بهشتی زیور۶۰مخ)

**مسئله** :- ډیروخت ښځې اونارینه دواړه په سلام کي بې احتیاطی کوی ،دیته نه ګوري چې داوخت دسلام اچولودی کنه ؟که ذکروي ، که تلاوت وي که خطبه وي که اذان وي اوکه دغه رنګه بل شی ،نوهم دوی یوه ، بله خواتیریږي راتیریږي اوخلګوته سلامونه اچوی اوحال دادی چې دعبادت پروخت (یعنی که ذکر وی ، که لمونځ وی اوکه دغسي نور) دسلام ویل منع دی ؛ دغه رنګه که یوڅوک په ګناه . لګیاوي ، هغه ته هم سلام مه اچوئ ځکه چې دګنهګارعزت کول روانه دی ، اوسلام کول یوډول عزت دی.



دریېیم دپیشاب (اودس مات ) پروخت اودخوراک ، څښاک پروخت هم سلام بایدوانه چول شی .(معاشرت کی حقوق/۳،۷مخونه)

خلاصه داشوه چې فقهاؤ رحمة الله علیهم په دووځایو کي سلام اچول منع کړي دي : لومړی : کله چې یوڅوک په عبادة کي مشغول وي.

دوهم: کله چي څوک په معصیت (ګناه ) کي مشغول وي.

دریېیم: کله چي څوک دبشري حاجت په پوره کولو مشغول وي.

(الکلام الحسن ۱۱۷مخ)

**مسئله** :- ځیني خلک ځوانوښځوته سلام وراچوي یادهغوی سلام ته ځواب وایي ، اوحال دادی چي فقهاؤ نامحرمی ځواني ښځې ته سلام وراچول اودهغې سلام ته ځواب ویل دواړه منعه کړي دي.

(اصلاح الرسوم)

**یوه ټوکه** :-یوچاپه یوځای کي ددې لپاره چي دسلام غلط ډولونه مسخره کړي ډیره په زړه پوري خبره وکړه هغه داسی ؤچي دغه نفر یومجلس ته ورغی اوورته ویې ویل چې زماسجده قبوله کړئ ، هغوخلکوپه حیرانتیاسره ورته وویل چي داڅه چټیات وایي ؟ نموړی نفروته وویل چې دلته راتلونکي خلک په مختلف ډول اوطریقه سلام اچوي ، څوک وایي ادب مي قبول کړه څوک وایي قربان دی شم ، څوک وایي له بدوسترګوپه امان شي ، اونوبیادغه رنګه نوري خبري کوي آن داچي ماته ټول الفاظ ختم شول ، نوماله ځان سره فکر وکړ چي زه اوس څه وکړم ؟ وروستوله ډیره فکره دي نتیجې ته ورسیدم چې بغیرله سجدې بل څه راته پاته نه ؤ ، نوځکه

مي داسي وويل خولنډه داچي په سلام کي بايدله شريعت څخه خلاف لفظونه استعمال نشي. (وعظ الارتياب)

**مسئله** :- کله خولادارنگه نادره هم پيښيږي .يوطالب العلم خپلې مورته راغى اوسلام ئي ورباندى واچاوو ، موريي په څواب کي کاږه وکتل اوپه درانه طبيعت يي ورته وويل چي زويه ! دادى ډيره بې تميزي وکړه ، لږپه ادب خبري کوه. محترمو !داپه يادساتئ چي سلام ته بې تميزي ويل کفر دى ،ځکه چي سلام ته بې تميزي ويل په حقيقت کي د نبى کريم صلى الله تعالى عليه واله وسلم سنتوته بې تميزي ويل دي ، اوهغوته بې تميزي ويونکى کافردى که هغه له دغه عمل څخه توبه ونکړي نوپه اسلامي حکومت يې وژل واجب دى .
(تسهيل المواعظ /۲توک/۳۲۹مخ)

**دمصافحي غلطياني :**

**مسئله** :- خلک دافکر کوى چي مصافحه (يوبل ته لاس ورکول ) يوضروري شى دى ، خوحال دادى چي هغه دغومره ضرورى نه ده ، دفقهاؤقول دليل دى چي هغوى صراحتاً داويلي دي چي په فلاني اوفلانى ځاى کي سلام مه واياست له هغوڅخه يوداهم دى چي که څوک اوبه څښي ياڅه شي خوري نوهغه ته سلام مه وراچوئ دغه رنگه که څوک وظيفه کوي ياقرآن کريم وايي نوپه هغه صورة کي هم فتوى داده چي سلام مه ورباند ى اچوئ په دغه ډول نورځايونه هم شته چي سلام اچول پکي منعه دى . اوحال داده چي بنفسه سلام ته مصافحي ډيرضروري دى.



په حديث شريف کي راغلى دى: (ان من تمام تحياتکم المصافحة) مطلب يي دادى: چي مصافحه تمامونکي دسلام ده ، نودسلام لپاره چي کومي قاعدى دى ، نودمصافحي لپاره خوبايدپه طريقه اولى سره دغه قاعدى وي ځکه چي مصافحه دسلام تابع ده ، دمثال په ډول فقهاؤ رحمة الله عليهم ليکلي دي چي داذان پروخت ، دخوراک ، څښاک پروخت اودغه رنگه دنورمشغوليتونوپروخت بايدسلام وانه چول شى ، نوله دي څخه معلومه شوه چي په دغوځايوکي مصافحه هم نشته.

**مسئله**:- نن سباکه له چاسره مصافحه ونه شي نوغصه کيږي ؛ يوورځ ماخپل سرتيټ اچولى ؤ اووظيفه مي کوله چي يونفرراغى اودمصافحي په نيت راته ودريدى ، ماورڅخه سترگي بندى کړي ترڅوهغه زمامشغوليت اومصروفيت ووينى اوولاړشي ،خوهغه بياهم هلته ولاړپاته شو، اواخيريي راباندى رږغ وکړچي مصافحه ! ماهم بې له ځنډه ورته وويل وظيفه ! داسي خلک هم شته چي خلک تراوورږوکشوي چي له ماسره مصافحه وکړه ، دنن سباخلکومصافحه ، مصافحه نه ده تيارغم دى . (حسن العزيز/۴توک/۴۳۰مخ)

**مسئله** :- ډيرعلماء شته چي درخصتي مصافحه بدعت بولي مگرزموږ علماؤهغه روابللى ده ځکه چي درخصتي پروخت سلام خوپه نص ثابت دى اومصافحه تماموونکي دسلام ده نوله دي خاطره مصافحه هم رواشوه .(حسن العزيز/۴توک/۴۲۵مخ)

**مسئله** :- ځینې خلک له مصافحې وروسته لاس نیسې اونه ئې پرېږدي ، له دې څخه تکلیف جوړېږي دچالاس خاماخاله ځان سره ساتل بددی.

**مسئله** :- دغه رنګه په داسې وخت کې هم دمصافحې کول مسلمان ته تکلیف ورکول دی چې دهغه لاسونه بندوی.

**مسئله** :- که یوڅوک په کارلګیاوي له هغه سره مصافحه ښایي دهغه لپاره تکلیف وي ، اوپه دغسې یوحالت کی مصافحه کول سخت کارهم دي.

**مسئله** :- هغه څوک چې په تیزۍ سره روان وي هغه هم بایددمصافحې کولو لپاره ونه درول شي.

**مسئله** :- ډیرخلک داعادت لري چې له وعظ (نصیحت) څخه ورستوخاماخاله وعظ کونکي سره مصافحه کوي ، اوحال داوي چې دوی تروعظ له مخه هم له هغه سره لیدلی وی اودمصافحې اوسلام وخت په لاس ورغلی وي خودهغه باوجودیې مصافحه نه وی کړې ، نوداچې وروستومصافحه کوی دادوعظ لپاره یوډول خصوصیت شو په داسې حال کې چې په شریعت کې دمصافحې لپاره دوعظ تاکل اوخاصوالی ثابت نه دی ، نوبناءً ویلای شو چې داله یوې خوابدعت شو اوله بلې خواتکلیف .(تسهیل المواعظ ۱/ټوک /۵۸۵مخ)

**مسئله** :- ځینې خلک داسې کوي چې کله له چاسره مصافحه وکړې نوبیاخپل لاسونه ښکلوی دادکوم اصل له مخې نه بلکه دجهالت نتیجه اومکروه کاردی. (فتاوی رحیمیه/۲ټوک/۳۰۲مخ دشامی په حواله /۵ټوک/۲۳۷مخ)



**مسئله**:- ځینې خلک دالسلام علیکم ) ویلوپروخت په تندی باندی لاس نیسي یاټیټیږي ، او ځینې له مصافحې کولو وروسته خپل لاس پرسینه نیسي ، داټول کارونه بې بنیاده اوله شریعت څخه خلاف دي. (غلاط العوام ۲۴۶مخ)

**مسئله** :- په یوحدیث شریف کې راغلی دی چې یوصحابي فرمایي چې زمالاس د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم په دواړو مبارکولاسونوکې ؤ،له دې څخه ثابتیږي چې په دواړو لاسوسره مصافحه کول سنت دي ، بدعت نه دی. (فتاوی رحیمیه/۲ټوک/۳۰۹مخ)

**مسئله** :- یوبل ته د((السلام علیکم)) ویلو پروخت له هغه سره لاس مه پورته کوئ که اوریدونکی لیری وي یاسوکه نه اوری ، نوهغه ته دسلام اوازورسوئ اوکه بیاهم په اوریدلو کې شک ، ، نوبیادسلام دلفظ دویلو ترڅنګ دلاس اشاره هم وکړئ. (فتاوی رحیمیه/۲ټوک/۳۹۰مخ)

**مسئله** :- مصافحه په دواړو لاسو سره سنت ده ، اوغیرمقلدین چې کوم حدیث وړاندې کوی ، له هغه څخه معلومیږي چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم په دواړولاسو نوسره مصافحه کړې وه ، ځکه خودصحابی لاس د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ددواړولاسونوترمنځ شو ، اوصحابي له نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم سره په یوه لاس مصافحه کړیده ،دغه حدیث دصحابی دیولاس دمصافحې په باره کې قطعاً نه ده ، ځکه چې کله له دواړوخواووپه دواړولاسوسره مصافحه کیږي نوحتماً به یولاس په منځ دنورولاسونوکې واقع کیږي اودلته دغه صحابي ض د نبی کریم

صلی الله تعالی علیه واله وسلم ددوولاسونوترمنځ ؤ،په دې سره مقصوددانه دی چې خلکوته وښايي چې ماله نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم سره په یوه لاس مصافحه وکړه دصحابه کرامو په اړوندداتصور هم نشي کیدلای چې نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دی دمصافحي لپاره دواړه لاسونه پورته کړي وی اوهغودی ورسره په یولاس مصافحه کړې وای اودلیل یې دادی چې امام بخاری رحمة الله علیه دغه رنګه یواثرله عبدالله ابن مسعود رضی الله تعالی عنه څخه نقل کړی دی اوبیايي له هغه وروستوهمدغه اثرددې دلیل ګرزولی دی چې مصافحه بايدپه دواړولاسووي اوورسره یې دحضرت حمّاد رضی الله تعالی عنه عمل هم وړاندی کړی دی چې هغه داحادیثومعتبرعالم ، اوپه احادیثوکې امیرالمؤمنین حضرت عبدالله بن مبارک رحمة الله علیه سره په دواړو لاسو مصافحه وکړه ، نوکه مصافحه په یوه لاس سره سنت وای نودغومحدیثینوحضراتوبه خامخاله دې څخه منعه کړې وای .امام بخاري رحمة الله علیه فرمايي: باب المصافحه قال ابن مسعود رضی الله تعالی عنه (عَلَّمَنِی رسول الله صلی الله علیه وسلم اَلتَّشَهُّدُ وکفی بین کفیه )

حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه فرمايي چې ماته نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم التحیات(تشهد ) راښووي ، په هغه حالت کې زمالاس د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دلاسونوترمنځ ؤ (په دې سره بايدپوه یاست چې دادتعلیم موقع وه



څرنګه چې دبیعت پروخت وي )له هغه څخه وروسته امام بخاري رحمة الله علیه یوباب پرانستی دی (باب الاخذبالیدین ) یعني په دواړولاسونوسره مصافحه کول اوددې خبري دسپیناوی اوثبوت لپاره یې دابن مسعود رضی الله تعالی عنه دغه اثر اودحضرت حمّاد رضی الله تعالی عنه عمل وړاندی کړي دی اوفرمايي : باب الاخذبالیدین صافح حمّادبن زیدابن المبارک بیده . حدثناابونعیم قال حدثناسیف بن سلیمان قال سمعت مجاهدا یقول حدثنی عبدالله ابن مخبره ابومعمر قال سمعت ابن مسعودیقول علمنی النبی صلی الله علیه وسلم وکفی بین کفیه التشهد کمایُعلمُنی السورة.

(بخاری /٢توک /٩٢۶مخ)

دامام بخاري رحمة الله علیه له دغي طریقي ښودلو څخه ډیره پوره څرګنده شوي ده چې مصافحه په دواړو لاسو سره وي . دغه رنګه شامی هم لیکلي دي: والسنة ان تکون بکتایدیه.

(درمختار والشامي /۵توک / ۳۳۶مخ )

مجالس الابرارلیکي: والسنة ان تکون بکتاالیدین یعنی دمصافحی سنت طریقه داده چې په دواړولاسو سره وي ، دادابوالحسنات علامه عبدالحی لکهنوی رحمة الله علیه لیکنه ده : یعنی ټولوفقهاؤپه دواړولاسو مصافحه کولو ته سنت مصافحه ویلي ده ، له حضرت ابوامامة رضی الله تعالی عنه څخه روایت دی: قال قال رسول الله ﷺ اذاتفاصح المسلمان لم تفرق اکفیهماحتی یَغفرلهما.یعنی کله چې دوه مسلمان مصافحه سره کوي نودهغوی دلاسونو تر جلاکیدلوله

مخه دوی ته دګناهونوبخښنه کیږي .(انتهی ) .داحدیث هم پر دې دلیل دی چې مصافحه بایدپه دواړولاسو وي ، ځکه که په یوه لاس سره وای نوبیابه د(اکفهما) پرځای د(کفاهما) لفظ وای . له پورتنیوټولو حدیثونواوخبروڅخه معلومه شوه چې دتابعینوپه زمانه کې هم دغه طریقه رواج وه. اودبخاري شریفې په حدیث کې چې حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله تعالی عنه فرمایي: چې ماته نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دقرآن دسورة دښودلو په ډول التحیات رازدکاوو ، نوپه هغه حال کې زمالاس د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ددوولاسونوترمنځ ؤ،له دې څخه معلومه شوه چې دادملاقات (لیدوکتو) مصافحه نه، بلکه دادښوونې (تعلیم ) مصافحه وه لکه چې تاسو به هم لیدلی یااوریدلی وي چې بزرګان کشرانوته دخاص شي دښودلو پروخت دهغویویادواړه لاسونه نیسي ،اوکه دغه مصافحه دملاقات هم وبولونوبیاهم پکې د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم دواړه لاسونه پردې دلیل دی چې مصافحه بایدپه دواړولاسوسره وي ، اودایقیني اوقطعي نه ده چې رشتیابه هغه ابن مسعود رضی الله تعالی عنه نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ته یولاس ورکړي وي ، بلکه ډیردې امکان دی چې هغه به هم دواړه لاسونه نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ته ورکړي ؤ ځکه چې د(کف) لفظ دواحدلپاره نه بلکه دجنس په معنی دی . دغه رنګه د((ید ))دلفظ استعمال په عربي محاوره کې ،دقرآن کریم په



ایاتونوکې اوهم په نبوي حدیثونوکې دجنس په معنی ثابت دی. نوپه دغه صورة کې یولاس هم د((ید )) اودوه لاسونه هم د((ید )) په ضمن اوشمول کې راتلای شی اوډیرداسې ځایونه شته چې ددوولاسونویادونه په ((ید )) سره شوې ده ، په دغه اعتبار چې په کوم حدیث کې اخذباليد(په لاس مصافحه ) راغلې دی هلته مرادورڅخه دانه دی چې مصافحه دې په یولاس وي بلکه ددواړوصورتونوامکان شته ، خوکه له کوم صریح اوصحیح حدیث څخه داخبره معلومه شوه چې مصافحه په یوه لاس سنت ده نوهغه وخت به دفقهاؤ خبره پریږدو.اوبغیر له دغه رنګه صحیح اوصریح حدیث له پیداکیدلوبایددفقهاؤ قول معتبروګڼل شي اوعمل وربانډې وشي .(والله اعلم) (مجموعة الفتاوی مولاناعبدالحی الکهنوی اردومبوبه ۱/۱۷ مخ پاکستان چاپ)

ددغه حدیث په اړونددلوی محدث حضرت مولاناخلیل احمدمهاجرمدني رحمة الله علیه یوه قصه په (تذکرة الخلیل )نومې کتاب کې پردغه ډول راغلې ده :یوواردتانک سیمې ته تللی ؤ چې زه هم ورسره په دغه سفرکې ملګری وم ، هلته ورته داهل حدیثو څونفره راغلل اوپه یوه لاس یې مصافحه وکړه ، خوهغه رحمة الله علیه ورته دخپل عادت سره سم دواړه لاسونه ورکړل اوپه مسکا(نرمه خندا ) یې ورته وفرمایل ! مصافحه بایدداسې وي ؛ اهل حدیث ورته وویل چې په حدیث کې راغلی دی چې یوصحابی رضی الله تعالی عنه وایي: وکان یدي في یدیه ﷺ یعنی زمالاس د نبی کریم صلی الله تعالی علیه واله وسلم ددواړو لاسو نو ترمنځ ؤ محدث کبیر رحمة الله علیه بې

ځنې ورته وفرمایل ، نودلته دنبوی سنتوتابع زه شوم اوکه ته ؟

(تذکرة الخلیل ۲۰۴مخ)

نودي ته په فهم سره بایدووایوچي مصافحه په دوا ړولاسو سره سنت ده نه په یوه لاس . (فتاوی رحیمیه /۴ توک)

حضرت مولنااشرف علی تهانوی رحمة الله علیه فرمایي چې ځینې خلک داصلح (جوړه ) بولي چي کله دوه نفرسره په جنګ شي ، نودربیم ګړی سمدستی دوی مصافحي ته سره مجبور کړي اومصافحه ورباندی کوي که څه هم ددواړوخواووزړونه یوبل ته ډک وي ، نوزه داوایم چي اول هغه دجګړې لامل (سبب) له منځه وباسئ (یعنی دجګړی دبیاجوړیدلو امکان ختم کړئ ) بیاورباندی مصافحه کوئ کنه نوبغیرداصلی سبب له منځه وړلو مصافحه بې ګټې ده ، په دي سره ددواړوخواوو له زړونو څخه غصه اودردنه وزي ، اوتر دې وروستوبیاددوي ترمنځ وژني اوجګړې رامنځته کیږي .

(کمالات اشرفیه /۱توک/۱۲۹مخ)

**اللهم اجعل هذالي زادالاخرة واغفرلكاتبه وارزقه رفاقت حبيبك**

**في يوم يجعل الولدان شيبا ط**

**وصلى وسلم على محمد عبدك ونبيك وحبيبنا**